باید ازاد پریښودل شي ، حکومت یا کوم
بل ارګان په نرخونو او یا د خلکو په کار او
بارکې هیڅ مداخله ونکړي چې څوك
څه کوي ودي کړي . )

له‌ادم سیمیث وروسته په ۱۹ - ۱۸ پیړی
کې ددې مکتب معارضین - مالتوس - او
ریکاردو - را پیداشول دوی د ادم سیمیث
برعکس د اقتصادي معاملو د مطلقې
ازادی مخالف و او د حکومت نسبي
مداخله یې د اقتصاد لپاره ضروري ګڼله
، مالتوس د نړی د اقتصاد عدم توازن
دنفوس زیاتوالی ترټولو ستر عامل بلکه
ستر ګواښ بولي دا ځکه چې بشري شمیره
د هندسي متوالی غوندې مخ په زیاتیدو
دی ( یعني له دوو څخه څلور او له څلورو
څخه اته او - ۱۶ او- ۳۲ او - ۶۳
او . . . )

پداسي حال کې چې اقتصادي امکانات او
غذائی مواد ( د انساني ژوند ضروریات )
د ریاضي ( عددي ) متوالی په څیر لوړیږي
( یعني ځمکه په کال کې د یو محصول او
هغه هم یو ځل او یا له کمه دوه ځلي توان
لري بل دا چې د ځمکې ساحه ثابته او
محدوده ده حال دا چې د انسان مایحتاج
ځمکه ( د استعمال لپاره ضروري ځمکه )
په ډیري چابکې سره مخ په کمیدو ده ،
دوی ددې خبري افاده کول غواړي چې د
ځمکې د نفوس او د ځمکې د امکانیاتو
ترمینځ تعادل او توازن موجود ندی یعني د
ځمکې امکانیات په مراتبو تر انساني
اړتیاو کم دی ، او ددې توازن لپاره طبعا
دا ممکن نده چې ځمکه له خپل معین
حجم څخه پلنه کړو ، نو دوی ممکنه لار د
نفوس کنترول لول تجویزوي که نفوس
کنترول نشي نو حتمي ده چې فقر را
منځته کیږي ، مرضونه ، جګړي ، د بقا او
زیست منازعه را منځته کیږي مرګ او میر
زیاتیږي او . . . مالتوس د دوباره توازن
لپاره دغه مرګ او میر اود مرضونو افت
یوطبیعي حل بولي ، دی عقیده لري که
چیري د نفوس حالات مساعد کړو، منظم
پلان نشي طرحه کیدای بیا نو په کار ده
چې د طبیعي حل ( مرګ او میر ) لپاره
حالات مساعد کړو ، مالتوس یو اسطناعی (
غیر طبیعي ، یا پلان شوي ) حل هم وړاندیز
کوي (( . . . حکومتونو ته پکار ده چې
میندې تشویق کړي ترڅو کم اولادونه
وزیږوي ، ځوانان باید تر واده د مجردی
ژوند ته ( له ازدواج پرته خپلې نفسي
غریزي ارضا او رفع کولوته) ترجیح ورکړي
، په غریبو هیوادو ( کوم چې د اقتصادي
پرمختګ زور نلري ) باید جګړې خوری
شي او . . . )) د مالتوس په نظر د
اقتصادي ارزښت توازن تر انساني هستی
لوړ او اهم دی او پکار ده چې انسان د
اقتصادي توازن په وړاندې قرباني شي
یعني تر هغه توازن قربان شي چې پخپله د
انسان لپاره دي انساني اخلاق او انساني
حقوق د مالتوس په نظرله هیڅ ارزښت
سره برابر دی . د مالتوس د نظریې اثر دی
چې له‌اوږدې زماني را هیسې ( د نسل د
کنترول تر عنوان لاندې ) بیشمیره انساني
جنایات شوي او کیږي اخلاقي او جنسي
مفاسد ته مشروعیت ورکړل شوي او
بلاخره دغه مفاسدو په غټو غټو مرضونو
تبدیل شوي ( لکه د ایډز مرض چې د
غرب اقتصادي ثمره په غټه پیمانه ترینه
قربان کیږي ) د مالتوس د نظریې د
تطبیق لپاره ( داقتصادي توازن په نیت )
وضعي اقتصاد لګیا ده له یوې خوا فتني
زیږوي او له بلې خوا لګښتونه پرې کوي ،
دا چې په کال څومره پیسې دایډز د مرض
( او نورو جنسي مرضونو ) په تشخیص ،
وقائی ، علاج او اړوند پروژو مصرفیږي
پخپله یو بل باب دی ، همدارنګه کوم
مصارف چې د امنیت د تامین ( دارهاب
تروریزم ، او د جګړو د مخنیوي په غرض ،
چې اصلا غرب ددې مکروب متصدي دی )
په عنوان کیږي له حسابه وتلي ( د نظامي
پکتونو لګښت ، د جګړو تمویل ، د
هستوي وسلو رقابتو ته ، د جاسوسي
شبکو لګښت ،د سیاسي او ډیپلوماتیکو
ماموریتونو لګښت ، د اعلامي پروپاګندو
او تبلیغاتو لګښت د خپلو اړوند
مستعمرو او متعهده غړو هیوادو لګښتونه
او . . . ) حتی چې ځینې اقتصادي
څیړونکي هغه لګښتونه چې په مډرني نړی
کې په تفریحي او هوسي مسایلو ( لکه د
فلمي نړی ، سینما ، قماري معاملې ،
سپورتي لوبې (( المپي کونه او . . . )) ،
رقاصخاني ډانس کلبونه ، شرابخانو ،
موسیقي ، د سګریټو ، د حیواناتو دساتنې
او . . . . ) کیږي دا ټول په اقتصادي نړی
کې سخته منفي اغیزه او اثر لري ، ځکه
چې د انساني جهد او زیار ثمره ( او
همدارنګه د ځمکې طبعي مصادر او منابع
، چې د ټولو انسانانو ترمنځ مشترك دي ) د
نړی د عمران او سوکالی په ځای د څو
انسانانو د هوس قرباني کیږي او دا یوه
مذمومه کړنلاره ده . ( هغه متل صدق کوي
چې وائی : هیڅ دولت مند نه دی غني شوی
مګر د فقیر په فقر . ) د همدې ازاد ( بې
بندو بار ) اقتصاد نور اجتماعي اثار ( لکه
طبقاتي انقسام او ویش ) صرف د افرادو په
کچه نه بلکې د دولتونو اوټولنو په سطحه

يې منفي اغيزې د محاسبه وړ دي مثلاً په طبقاتي ټولنو كې لكه څنګه چې په انفرادي سطحه حرص انانيت ، نفس پرستي او فردي مصلحت او لويت او اهميت لري په همدې توګه په ملي او دولتي سطحه اجتماعي حرص او هوس غټې كمپنۍ په مفاد پرستي كې دومره بې باك او بندو باره كړي چې د غټو ټولنو ترمنځ د جګړو او تباهۍ سبب شوې ژوندى مثال يې لومړۍ او دوهمه نړيواله جګړه ده چې اساسي هدف يې د اقتصادي پراختيا او د نورو طبعي منابع او اقتصادي مصادر تر لاسه كول وو ، د وضعي اقتصاد په حكم لكه څنګه چې افراد په هر عمل كې مطلق ازاد دي همدغسې غټې كمپنۍ او حكومتونه هم كولاى شي د خپل مصلحت لپاره هر روا او ناروا ( په نورو حمله او د هغوى شتمنۍ غصب كول ) اقدام ته لاس واچوي (( . . . د انسان ازادي حدود او انتها نلري . . . ))
دغه بدبخته شعار يوازې په دوهمه نړيواله جګړه كې ۳۲ ميليونه انسانان قربان كړل ۲۰ ميليونه وګړي معيوب او معذور شول ، ۱۷ ميليونه ليتره وينه توى شول ، ۱۲ ميليونه اميندوارو ميندو خپل حمل ضايع كړل ، ۱۳ زره مكتوبونه او كودكستانونه ، ۶۰۰ پوهنتونونه ، او ۸۰۰۰ زره كيمياوي لابراتوارونه له بينه ورل شوي او ۳۹۵ زره ميلياره مرمۍ پير شوي ، دا چې په دې جګړو كې څومره پيسې او غله دانه او وران كاري شوي . . . ؟ !!!

له دوهمې نړيوالې جګړې وروسته اروپايان پخپل مكتب د بطلان كربنه را كاږي همدا ده چې نوي افكار او نوي لارې را اوچتيږي . دا وخت د سوسياليستي اقتصاد طرحې په ټولې اروپا كې قوي ملاتړي پيدا كړي وو ، يو لور ته اصلاح غوښتونكي دي چې ددې مطلقې ازادۍ لپاره حد او حدود غواړي او بل خوا هغه افراطيان دي چې له سره غواړي ټولې غټې كمپنۍ او فابريكې ( ماليكيتونه ) ملغاشي ، او نه غواړي د كپيټاليزم تجربه نور پر مليتونو دوام وموممي ، بنائی د صنعتي انقلاب وروسته ( كله چې په اروپا كې كارخانې زياتې شوې ، كليوال او دهاتي توليدات او كسب ګرۍ په ټپه ودريدل ، انفلاسيون او بې كاري عامه شوه ، نقده پيسه زياته خو سرمايه محدودو كسانو ( د فابريكو او كار و بار ماليكينو ) ته ورسيده ، نرخونه لوړ سول او د اكثريت وګړو ( به خصوص كاريګرانو ) د خريد توان ضعيفه شو ، توليد هم اضافه سو ( څكه د لاسي توليد ځاى ماشيني توليد ونيو ) كارخانې هم اضافه شوې ، د توليد او مصرف ترمنځ تعادل له منځه لاړ و د نرخونو او خريد ترمنځ توازن ختم شو ، د توليداتو د اوبه كولو لپاره پراخ ماركيټ ته ضرورت وو همدا و چې ګمركي قيودات ختم شول د ګمركي موانعو د ختميدو سره تجارتي رقابتونه پيل شول يو خل بيا نرخونه را ټيټ شول د كارخانو ماليكينو د تكاليفو ( مصارفو ) د راټيټولو په خاطرد يوې خوا د كار ساعتونه زيات كړل او له بلې خوا يې د كارګرانو معاشونه كم كړل . دغه اقدام يو ځل بيا د كارګرانو د خريد توان را كم كړ ، مطلب د صنعتي انقلاب او ازاد بازار رقابت ټول زور او قيمت كارګرانو ادا كاوه ، او په مقابل كې ورځ په ورځ د هغوى ژوند خرابيدو ، دغه تسلسل په كارګرانو كې د ارباب خلاف د نفرت او كركې شعور عام كړ او د اجتماعي عدالت په اميد يې مبارزه پيل كړه ، خو دا شعور ډير عام و چې په كپيټاليزم كې اجتماعي عدالت نشته . . . . )

**سوسياليستي ( اشتراكي ) اقتصاد :**

اصل سوسياليزم د كپيټاليزم زيږنده ده خو د اشتراكي فكر تر ټولو ستر عيب دا و چې سوسياليزم ونشو كولاى د وضعي اقتصاد خلا ډكه كړي كه څه هم د دوى غولونكي شعارونه ( كور ،كالي ، ډوډۍ ) په پيل كې بنه استقبال شول خو د همدې شعارونو غټه كفاره بيا هم هماغه سپيره او ستم كش كارګر وركړه ، د پرولتاريا طبقه د همدې انقلاب لومړي ښكار وو چې ترې قرباني شو . سوسياليزم ونشو كولاى د سرمايه دارۍ د عيبونو دقيقه پيژندنه وكړي يوازې په همدې باور وو چې خصوصي ماليكيت او په هغې كې مطلقه ازادي ددې ټولو ناخوالو او بدبختيو عامل دى ، نو د علاج په تكل يې خصوصي ماليكيت لغوه او د ملكيت حق يې يوازې پر حكومت مختصر كړ . دې كار نه دا چې د ازاد اقتصاد عيبونه علاج نكړل بلكې پخپله كمونيزم د يو عالم مشكلاتو او مفاسدو سبب شو ، كمونيزم د انسان ډير اساسي او فطري حق چې هغه د ازادې حق دى سلب كړ دوى د سرمايې د عادلانه توزيع په غرض د نړۍ تر څلورم ربعه زيات خصوصي ملكيتونه ( كوم چې د مشروع تلاش او زيار په نتيجه كې لاس ته ورغلي وو ) ملغا ( غصب ) او په داسې خلكو تقسيم كړل چې نه يې حق كيدو او نه يې هم د تصرف په طريقه پوهيدل ، همدا و چې د كمونيزم د ظهور په لومړي كلونو كې كمونيستي نړۍ په مزمن اقتصادي ركود كې تير كړل ، د املاكو د تقسيم په مرحله

کې ۸ میلیونه انسانان ووژل سوه ، ۱۷۵ میلیونه انسانان د ازادی د نعمت څخه محروم شول ، تر ۴۰ میلیونه اضافه خصوصي ملکیتونه دولتي شول ، د میراث ، ځمکو او املاکو د تقسیم په نتیجه کې چې څومره دښمنۍ او بد بیني ایجاد شوي په تاریخ کې ساری نلري ( حتی چې د کمونیزم د زوال وروسته هم ددغو دښمنیو اثرات ختم نه شول ) د کمونیزم د حکم په دوران کې ۱۸ خپلواکه هیوادو خپله ازادي په بشپړه توگه له لاسه ورکړه ، له کمونیزم سره د مخالفت په اتهام ۱۷ میلیونه انسانان زنداني شوي وو ، له کمونیستي رژیم څخه چې کومي ستونزي په میراث پاتي شوي هغه د کمونیزم د زوال وروسته تر دي دمه لا هماغه توگه ولي کړ وي او زیانونه یې نشي جبیره کولای، له روسي ښکیلاک څخه د ازاد شویو هیوادو اقتصادي اوضاع مهیب او وحشتناک قابوس ته که سړی ځیر شي نو ددې جرئت به هم ونکړي چې د اشتراکي اقتصاد نوم په خوله واخلي ، ایا همدا د کمونیزم هر اړخیز زوال ددې مکتب د بطلان عمده دلیل نه دی ؟

دا هم واقعیت دی چې د کمونیزم مفکوره او شعار د کلیسا په ابتکار ( له اروپا څخه د خپل تیر برم د انتقام په مقصد په کومو هیوادو کې چې لاتر اوسه دغه نظام حاکم دی هغوی ته دغه سیستم د اور پرتوگ گرځیدلئ چې پر ځان پوري یې حیران کړي (که یې اغوستی پریږدي نو بدن یې سوځوي او که یې باسي نو ستر یې ماتیږي ) په هغو هیوادو کې چې کمونیزم حاکم وو نه یې مادي ترقي او تمدن تر لاسه کړی او نه یې په معنوي لحاظ ذهني او روحي سکون موندلی او نه یې هم داجتماعي عدالت خوب تعبیر شوی ، دغه نظام دومره فکري اختناق او ویره زیږولي وه چې د انکشاف او سالم تفکیر ډیر فرصتونه او استعدادونه پکي له بینه تللي ، همدا وجه ده چې په کمونستي هیوادو کې استعدادونو وده ونه کړه ، خلک یې ویرجن ، وږ سترگي ، بد گمان ، کسول ، بې فکره ، بې لیاقته او بې سلیقي تربیه شوی .

نو ویلی شو هر فکر او پلان چې د بشر له ناقص عقل او تدبیر څخه ( د بشري مشکلاتو لپاره ) طرحه شوي په خپل تل ( وجود ) کې د ځان د زوال بذر او تخم هم درلود . نتیجه دا اخلو چې بشري طرحی هیڅکله هم کاملي نه دي اوس نو نوبت ددې راغلی چې د اسلامي نظام اسلامي اقتصاد هم تجربه شي ، ځکه دا یو کامل او شامل نظام دی ټول اقتصادي مشکلات یې احتوای کړي بهترینه مێزه یې دا ده چې الهی فرامین دی او الله تعالی د خپل بشر په مزاج او ستونزو ډیر ښه اگاه دی ، ډیرو هیوادونو چې د اسلامي اقتصاد تجربه پیل کړي له دې نظام څخه پوره رازي دي ، خو ددې نظام او نورو وضعي نظامونو ترمنځ به راتلونکی مقایسوي بحث زموږ د ادعا لپاره سند شي بیا به پرې وگړیږو .

## ونې کښینوئ که قیامت پیل کیدو بیا هم ونې کښینوئ

رسول الله صلی الله علیه وسلم وایی : إِنْ قَامَتِ الْقِيَامَةُ وَبِيَدِ أَحَدِكُمْ فَسِيلَةٌ فَلْيَغْرِسْهَا .

ژباړه : که چیرته قیامت پیل شو او په دې حالت کې ستاسو د یوه تن په لاس کې نیالگی وي نو لازمه ده چې هغه نیالگی ولگوی او ویی کری .

د حدیث شریف لفظي معنی ته که وکتل شي نو حدیث بې معنی گرځي او څه گټه نه پکې لیدل کیږي . ځکه په حدیث شریف کې خو داسي راغلي چې که چیرته قیامت پیل شو . نوایا چې قیامت کله پیل شي بیا څوک کولای شي چې نیالگی ولگوي او یا باغونه کښینوي . ؟ !

دا خو ناممکنه ده ځکه د قیامت په ورځ خو به د خدای ( ج ) عذاب دومره سخت وي چې خلک به داسي ښکاریږي لکه ټول چې بې هوښه وي " وَتَرَى النَّاسَ سُكَارَى " .

خو حقیقت دا دی چې په حدیث کې د إِنْ قَامَتِ الْقِيَامَةُ جمله د تاکید او ټینگار له پاره راغلي ده په دې ټینگار سره د رسول الله غرض دا دی چې تاسو خامخا نورو ته گټه رسونکي جوړ شئ آن تر دې پوري چې که له تاسو سره یو څو گړی او لمحی ژوند پاتي وي او اخري وخت مو وي نو په هغه مهال هم دا کوښښ وکړئ چې یوه داسي ونه ولگوئ چې له تاسو وروسته خلکو ته سیوری او میوه ورکړي زراعت او کرهڼه د اقتصاد مهمه منبع بلل کیږي په دې اړه تاسو د اسلام د ستر لارښود ټینگار ولید .

صلی الله علیه وعلی اله وسلم

**د خواځك په قلم**

# د دعوت او ارشاد قراني اسلوب

1

محمد وزير ( حامد )

په قرانکريم کې د دعوت اسلوب اوطريقه څه ډول ده ؟ يا دا چې قرانکريم ددين داعي او بلونکي ته څه ډول لارښووني کوي ؟ انبياء کرامو (عليهم الصلوة والسلام) ددين دعوت او بلني کومې لارې چارې خپلې کړې وې او په کومو اصولو يې ددين دعوت وړاندې کړی وو ؟ قران د داعي او بلونکي له پاره کوم اوصاف او ځانګړتياوې خوښوي ؟ ايا د دعوت ټاکلې لارې شته چې يو مبلغ او داعي يې خپلې کړي او يو زړه کونکي يې ددعوت په ښوونځي کې زده کړي ؟

دا موضوع خورا مهمه ده . له قرانکريم سره يې مستقيم تعلق او تړاو دی . او دا راز ددين د تبليغ او رسولو له موضوع سره هم تړاو لري . قرانکريم د دعوت او هدايت کتاب دی . او د احکامو او شريعت کتاب هم دی . خو په قرانکريم کې ددعوت او لارښوونې اړخ په نورو اړخونو غالب دی . د شريعت او احکامو له اهميت څخه انکارنشي کيدای او خورا لوړ شان لري . خو دلته د لومړيتوب او اهميت پوښتنه مطرح ده . کوم اړخ زيات اهميت لري او کوم د لومړيتوب حق لري . په دې لحاظ که وکتل شي نو ګومان کيږي چې د شريعت او احکامو په پرتله په قرانکريم کې ددعوت او هدايت اړخ غالب دی . ځکه چې د ايمان بنياد په هدايت باندې دی او د تبليغ په ذريعه سره ايمان تر لاسه کيدلای شي بناءًا خبره خرګنده شوه چې د قرانکريم په نورو مضامينو او اهدافو کې د دعوت او هدايت عنصر غالب دی .

## ( د دعوت اودين رسولو کار د ټاکلو قوانينو پابند ندی )

قرانکريم د دعوت اودين رسولو کوم اصول ټاکلي دي ؟ هغه کوم اصول او پرنسيپونه دي چې د هغو عملي کول ضروري دي ؟ ايا قرانکريم موږ ته ددعوت اودين رسولو ټاکلي اصول او قوانين ښودلي دي ؟

قرانکريم د دعوت د کار طريقي د قانون په ژبه کې ندی بيان کړي او دا ډول کړنه د مصلحت او حکمت غوښتنه هم نده ځکه ددعوت او تبليغ طريقه او طرز د چاپيريال له حالاتو سره سم ټاکل کيږي دا راز د مخاطبينو له طبعيتونو او ددين له مصالحو سره سم تعين کول کيږي .

په دعوت کې له حالاتو او زمانو سره مخامخ کيدل وي . حالات او زماني هر وخت تغير خوري او بدليږي له دې کبله د دعوت په کار کې (( حاضرخوابي )) او «حاضر دماغي» دواړو ته اړتيا ده .

او د دعوت چلوونکو ته د انساني نفسياتو پيژندل ، او د ټولني کمزوري اړخونه تشخيص کول ډير ضروري دی له دې کبله داسي نشي ويل کيدای چې داعي او بلونکي ته دا کار کول په کار دي او دا نه کول . دا خبره بايد وکړي او دا دي نه کوي هغه بايد دا اسلوب غوره کړي ، او خلکو ته په دې ډول دعوت وړاندې کړي د هغه له پاره دا حدود او ضوابط دي ، که څه هم هغه قوانين مرکزي ټکي ( out line ) وي ځکه داعي او بلونکي له ډول ډول ټولنو سره مخامخ کيږي . او بدل شوي حالات ورباندې راځي .

که چيرته داعي او بلونکي د اصولو په دائره کې وتړل شي . نو دده حالت به هم هغه سړي ته ورته وي چې وايي يوه کس يو مزدور نيولی و . مزدور له اړتيا زيات قانوني وخوت مزدور غوښتنه ځنې وکړه چې ماته خپلې دندې او مسؤليتونه په ګوته کړه او راته ويې ليکه . بناءًا هغه يو فهرست ورته تيار کړ چې په فلاني وخت له بازاره څخه سودا راوړل دي ، بل وخت کور صفا کول دي په هغه وخت دا کار او . . . مزدور ليکلي خدمتونه د ځان مسؤليتونه وبلل .

د خدای کړه وه يوه ورځ د مزدور بادار په آس سپور و او چې له آس څخه کوزيدو نو ولويدو پښه يې د آس په رکاب کې بنده شوه او آس منډه کړه دی وريسي ښکيده دلته نو دده د ژوند او مرګ مسٔله وه چې په دې حالت کې يې خپل مزدور وليد په بيړه يې ورته چيغه کړه چې هله مرسته وکړه،مزدور ورته وويل ته صبر وکړه چې زه خپل د مسؤليت پاڼه او فهرست وګورم چې ايا دا خدمت شته

پکې او که نه ؟
بادار يې د مرګ او ژوند په کشمکش کې دی او مزدور خپل اصول عملي کوي چې اخر بادار دده د اصول پرستي قرباني شو . يو عرب شاعر ښومره ښه خبر کړي ده :

اذا كنت في حاجة مرسلاً
فارسل حكيما ولاتوصه

ژباړه : که د يوه کار له پاره چيرته څوك ليږل غواړې نو ددې له پاره يو هوښيار او ځيرك سړی انتخاب کړه او هغه ته تفصيلي لارښوونې مه کوه . ځکه هغه په خپله پوهه او ځيرکتيا سره مناسبو حالاتو ته ګوري او ستا له خوښې سره سم کار کوي .

## د دعوت زماني او مكاني حدود

ددين رسول او دعوت خورا نازك کار دی . د هغه د وسعت او پلن والی اخري حد نشته . هغه څه زماني ( مهاليز ) او مكاني حدود لري او دواړه خورا وسيع ، پلن او خواره واره دي . د زماني په لحاظ که وکتل شي نو دده زمانه له هغه وخت څخه پيل کيږي چې کله کوم پيغمبر د خپل دعوت پيل کړي وي يا له پيغمبره پرته بل داعی د خپل دعوت ابتداً کړي وي، پای او انتها خو هيڅ لري نه. دا ډول ددعوت مكاني حدود هم نشي متعين کيدای . کيدای شي داعی او بلونکی په ختيځ کې وي يا په لويديځ کې او يا له ختيځ څخه لويديځ ته او له لويديځ څخه ختيځ ته نقل شوي وي له دې کبله که چيرته هغه ته يواځې د ختيځ والو د پوهولو لارې چارې معلومې وي نو نشي کولای چې لويديځ وال پوهه کړي او که يواځې د لويديځ والو د عاداتو او نفسياتو په اړه معلومات ولري نو په ختيځ کې به دده دعوت په ځای کار نه وي او نه به څه ګټه ځيني پورته کړي .

## د دعوت دآيت شريف لنډوالی - او اعجاز ، وسعت او ژوروالی.

دا د قرانکريم اعجاز دی چې ددعوت د کار طريقه او د هغه حدود يې ندی ټاکلي ، او دا کار يې د داعی او بلونکی دتميز خواك او سليم عقل ته سپارلی دی . ددې خبرې پريکړه ( چې کله او کوم وخت د کار څه ډول طريقه غوره کړل شي ). به په خپله د داعی ذوق کوي او د عقيدې په لارښوونه سره به يې ترسره کوي .
د داعی خپل ديني فکر ( چې په احساساتو او اعصابو يې واکمن دی ) به دکار لارې چارې ټاکي . قرانکريم يواځې يوه لويه کلا وهلې ده چې په هغه کې د ټولنې د اسلامي دعوت ټوله روح ځايه کړل شوی ده چې هغه دا آيت شريف دی .

ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ( سورت النحل آيت ۱۲۵ )

ژباړه : ای پيغمبره : خلك د پوهې او نيك نصيحت په ذريعه د خپل خدای جلا جلاله لارې ته را وبوله او په ډيره ښه طريقه له هغوی سره مناظره وکړه . څوك چې د هغه له لارې څخه بيلارې شوي دي ستا خدای په هغوی ښه خبر دی او کوم چې دده په لاره روان دي هغوی هم ښه پيژني .
ددې ايت شريف له مخې دواړه خبرې ښې ښکاره شوې يو دا چې داعی څومره ازادي لري . او څومره پابندي لري . تر کومه ځايه پورې هغه تلای شي ، او تر کومه حده ها خوا ګام کيښودل ممنوع دي . تر کومه ځايه چې د دعوت د وسعت او د داعی د ازادي تړاو دی هغه له دې تعبير او كلماتو څخه څرګنديږي چې (( ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ ))
( د خپل خدای د لارې لورته يې راوبوله )
په دې ايت شريف کې داسې ندی ويل شوی" چې دايمان لورې ته يې راوبوله ، يايې د سمې او رښتونې عقيدې لورې ته راوبوله ، يا د ښو اخلاقو خپلولو تر غيب ورکړه ، د انسانيت د احترام کولو لورې ته يې وهڅوه ، د لمانځه کولو دعوت ورکړه ، دا ټول ندي په ګوته کړل شوي خو دا ټولې خبرې په ( سبيل ربك ) کې نغښتې دي . دې لفظ د فكر او عمل ټول اړخونه پرانستي دي .
دا اړخونه هم محدود ندي بشري اړتياوې او په انساني ژوند کې ټول حاجتونه پکې داخل دي . د ( ادع ) - را وبوله - لفظ هم خورا زياتو معانيو ته شامل دی . په دې کې نه دا قيد شته چې د وعظ او بيانيې په ذريعه دعوت ورکړه ، نه دا چې د تحرير او ليکنې په ذريعه يې راوبوله ، نه دا چې په انفرادي يا اجتماعی توګه دعوت ورکړه د ( ادع ) په لفظ کې ټولې معناوې نغښتې دي . داعی به حالاتو او مواقعو ته ګوري هغه به د دعوت او بلنې فريضه کله د پند او نصيحت له لارې ادا کوي . کله د وعظ او کله د تقدير يا هم تحرير او ليکنې په ذريعه سره دا باريکه دنده ترسره کوي او يا د نورو رسنيو وسائلو له لارې . داعی کولای شي د دعوت هره هغه وسيله غوره کړي چې روا ، اغيزمنه او ګټوره وي روسته بيا د ( الی سبيل ربك ) جامعه جمله ده . له دې پرته بل هيڅ ډول فهم او كلمات نشي كولای چې دومره جامعيت ، وسعت پراخي ژوروالي په يوه وخت کې افاده کړي د ( حکمت ) لفظ

خورا بلیغ او زیاته پراخي او وسعت لري . په نورو ژبو کې ددې لفظ ژباړه اسانه نده دا ډول د ( موعظت ) لفظ هم خورا زیاتو معانیو ته شامل دی.

او د ( حسنه ) لفظ هم زیاتي معاني لري . قرانکریم په دې ایت شریف کې ازادي هم ورکړي ده او حد ټاکنه یې هم کړي ده ، ایجاز او لنډیز هم پکې دی ، بیان او تفصیل هم ( ادع الی سبیل ربك بالحکمته والموعظه الحسنه ) . ( النحل ایت ۱۲۵ )

دا ایت شریف له محمدي بعثت څخه مخکې تر ټولو لوی داعی یعني حضرت ابراهیم علیه السلام په یادونه کې نازل شوي دی . دا پوره تذکره او یادونه له هغه مخکنیو ایتونو څخه معلومیږي چې له (اِنَّ اِبْرَاهِیْمَ کَانَ اُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰهِ حَنِیْفًا) څخه نیولي تر (وَمَا کَانَ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ) پوري کیږي . له دې وروسته فرمایي : ادع الی سبیل ربك تراخره ـ لدې کبله دا ایت شریف د ابراهیم علیه السلام د توحید په بلنه پوري تړلی دی له دې ایت شریف څخه په خپله ، او د ابراهیم علیه السلام په یادونه کې ددې ایت راتلل ، دا رابنیي چې ابراهیم علیه السلام په خپل دعوت کې ددې ډول طریقې یوه غوره نمونه وه او دا چې دده دعوت د حکمت او موعظة حسنه په اصولو ولاړو .

**د دعوت مهم توکي پیښې او بیلګې دي**

قرانکریم د دعوت له پاره د پیښو او کیسو بیانولو ، بیلګو او مثالونو راوړلو اسلوب غوره کړی دی. د دعوت د نورو لارو چارو په پرتله دا طریقه ډیره اغیزمنه او دلچسپه ده او د هدف په تر لاسه کولو کې ډیره ګټوره ده یوه لوري ته که قرانکریم د تفصیلي اصولو او قانوني باریکۍ ښوولو ته ضرورت ندي لیدلی نو بل لوري ته یې دا خلا ( که خلا وبلل شي خو په حقیقت کې خلا نده ) د انبیا و په سپیڅلو سیرتونو او دعوتي خبرو اترو ( مکالمو ) په نمونو ډکه کړې ده دا نمونې په زړونو باندې خورا ژوره اغیز کوي په ذهن باندې د سحر په څیر اغیزه کوي څکه د عملي نمونو چې څومره اغیزه وي هغه د دعوت په نورو وسائلو کې نشي تر لاسه کیدای .

د منطقي او نفسیاتي علم الکلام جدلي اصول د دین د دعوت له پاره کارګر ندي ثابت شوي ټول اسماني صحیفو له پیله نه تر پایه پوري په عملي نمونو اعتماد کړي دی . دا نمونې او مثالونه ادبي ټوټې دي او په ښه توګه زړونه جذب کوي په دې کې زیاتي پیښې د څلورو سپیڅلو پیغمبرانو له سیرتونو څخه اخیستل شوي دي . حضرت ابراهیم ، حضرت یوسف ، حضرت موسی او حضرت محمد علیه وعلیهم الصلاة والسلام .

## ( د یوه مومن ددعوت نمونه چې ایمان یې پټ کړی و )

ددعوت په سلسله کې قرانکریم یوې مهمې نکتې ته اشاره کړې ده . هغه دا چې د دعوت کار یواځې په انبیاو پوري ندی تړلی . او که چیرته په انبیاو پوري دا کار تړل شوي وای نو خلکو ته به ددې خبرې موقع په لاس ورغلې وه چې چیرته موږ او انبیا ! هغوی د الله (ج) له ځانګړو مهربانیو څخه برخمن وو ، خدای نبوت ورکړی وو او وحی به ورته راتله ، روح القدس به یې تائید کاوه . موږ عاجزه بندګان د انبیاو کار کله کولای شو د هغوی په پله باندې تګ کول زموږ په وس کې نشته . له دې کبله قرانکریم د یوه داسې سړي بیلګه او نمونه راوړي ده چې نه خو نبي او نه د انبیاو تلی ملګری و بس یو مسلمان واو د فرعون له قوم سره یې تړاو درلود .

قرانکریم یواځې همدومره ویلي دي چې : وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ یَکْتُمُ اِیْمَانَهٗ ( المومن ۲۸ )

ژباړه : او د فرعون له قوم څخه یوه مومن سړي ( چې ایمان یې پټ کړی و ) وویل :

دې مسلمان داعی ته حالاتو او چاپیریال دا موقع هم نه ورکوله چې خپل ایمان ښکاره کړي د داعی په ژوند کې کله کله داسې پیښې راځي چې هغه نشي کولای څو خپل ایمان څرګند کړي که څه هم د ډیر قوي ایمان څښتن وي ابوبکر صدیق رضی الله عنه او نور ډیر صحابه کرام د اسلام په لومړنیو وختونو کې همداسې وو چې خپل ایمانونه یې نشوای څرګند ولای که څه هم د زیات قوي ایمان څښتنان وو .

د فرعون تربور دی مومن هم ایمان پټ کړی و ده له خپلو تربرو سره جګړه ونکړه او د یوه خپل او خواخوږي په صورت کې یې د دین دعوت دنده تر سره کړي .

د یوه څیرك او پوهه داعی له پاره په دې کیسه کې هم یوه نمونه شته . که څوك له شرائطو سره سم د یوه دیني مصلحت له کبله دین نشي ښکاره کولای نو د هغه له پاره د دعوت همدا نمونه غوره کول په کار دي او که یو څوك له داسې شرائطو سره مخامخ هم نه وي ، ایمان هم ښکاره کولای شي خو د خبرو انداز او له حقیقت څخه د خبرولو اسلوب ، او د یوه کار پایلې د ماضي له عبرتناکو تجربو څخه معلومولای شي نو هغه کس هم ددې مومن طریقه خپلولای شي .

وکلا وعد الله الحسني ـ ( النسا ۹۵ ) او الله له دې دواړو ډلو سره د ښو نعمتونو وعدې کړې دي .

پاتې لري .

ـ یادونه ـ

"ماخذونه به د لیکنې په پای کې راشي"

عبدالحکیم ( فاضلي )

# بروز مشکلات برپیکر نو بنیاد خلافت اسلامي و موقف ورد العمل های ابوبکر صدیق (( رض )) در برابر ان

**مقدمه :**

باختم سلسله ... رسالت و وداع گفتن پیام اور الهی محمد ( ص ) دنیای فاني را و اختیار کردن جایگاه ابریش بجوار پروردگار لایزال ، مسلمانان به فکر ان شدند تا شخصیتي را بحیث خلیفه و جانشین پیغمبر( ص ) انتخاب کنند تا از ایجاد سکتگي در نظام اسلامي جلوگیري بعمل اید و به ابعاد مختلف امور مسلمین رسیدگي نمایند بنا بر این مسلمانان در سقیفه گرد امده به مشوره پر داختند همان است که گروه انصار و مهاجرین هر کدام مبادرت مي ورزند با سبق انهمدیگر امیر ی از خود انتخاب نمایند که در جمع مسلمانان سه تن از بهترین و بزرگترین اصحاب رسول (ص) ابوبکر صدیق ، عمر فاروق (( رض )) و ابوعبیده بن جراح ) حضور دارند حضرت ابوبکر صدیق رشته سخن را گرفته به اهل مجلس خطاب میکند که : به یکي از این دو شخص که اشاره اش بسوی حضرت عمر و ابوعبیده بن جراح است بیعت نماید . اینکه حضرت عمر فاروق ( رض ) سر و صدای گروه ها را درین فرصت بیشتر می بیند دیگر مجالی به کس نداده از حساسیت وقت با تدبیر حکیمانه اش استفاده کرده و غایه را به لهجه بلندش چنین پیاده میسازد (( که ای مردم حضرت پیغمبر صلی الله علیه وسلم امر فرمودند تا بعد از وی حضرت ابوبکر صدیق (رض ) برمردم امامت کرد نماز گذارد ایا کدام یك شما خود را بر وی ترجیح میدهید )) ؟

در پاسخ همه صدا میکشند که نه خیر نغوذ باالله حضرت عمر (رض ) رو به طرف ابوبکر (رض ) نموده می گوید دستهایت را باز کن و بعد با گذاشتن دست بالای دست ابوبکر به او بیعت میکند سپس همه گروه ها به حضرت صدیق (رض ) بیعت نموده و با وحدت کلمه امت اسلامی بهترین مردی در قرباني راه خدا منحیث خلیفه و جانشین پیغمبر ( ص ) انتخاب میشود و فردای ان روز بیعت عام در مسجد صورت میگرد که بعد از انجام بیعت حضرت ابوبکر صدیق (رض ) اولین مطالب سیاسي اش را ضمن خطبه چنین اراد می فرماید : (( ای مردم من والی شما مقرر شدم مگر بر شما هیچ بر تري ندارم اگر برنامه خیر وصلاح را روی دست گرفتم مرا یاري رسانید و در کارهای ناپسندم در مقابلم بایستید . راست کاری امانت است دروغ خیانت ، ضعیف تان در نزد من قوی است تا حقشان را ان شاالله به اوشان برسانم و زور مندان تان در نزد من ضعیف است تا حق دیگران را از انها بستانم ان شاالله هر قوم که جهاد را ترک کرده است خداوند ایشان را به ذلت و خواری گرفته و هر قوم که فحشا در بینش رایج شده خداوند (ج ) مصیبت را به انان عام گردانده اطاعت کند از من تا انگاهی که از خدا ورسول اش پیزوی کردم هر گاه از دستورات خدا ورسول اش به عصیان رفتم از من اطاعت بر شما لازم نیست برخزید به نماز تان تا خداوند بر شما رحم کند ))

**نظریه خلافت اسلامي** : از همین جا در نزد مسلمانان نشأت می کند و اولین جلسه سیاسي و مهمترین روی داد در تاریخ سیاسي مسلمانان همین جلسه بشمار می اید در جلسه انتخاب خلیفه اخلافات لفظي و مناظره - فقط بخاطر برگزیدن صالح ترین و افضلترین فردي برای قیادت امت اسلامي و تحقیق مصالح علیهای جامعه اسلامي صورت میگیرد در نتیجه این وقت در انتخاب خلیفه است که مشکلات بزرگ که از طرف معاندین اسلام در مقابل خلافت اسلامی راه اندازی میشود یکی پی دیگري نقش بر اب شده مسلمانان به نصرت خداوند ( ج ) بر ان فایق می شوند .

## اغاز سرکشي و طغیان در مقابل خلافت اسلامي

بعد از رحلت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم خلافت نو بنیاد اسلامی تا هنوز قامتش را راست نکرده بود که سرمایه داران ضعیف الایمان و ماده پرست در مقابل خلافت اسلامی بر خاستند بدین

گمان که با رحلت پیغمبر اسلام فرصت مناسبی یافته اند تا قسمتی از مال شان راکه دین اسلام منحیث فریضه بنام زکات برای بی نوایان و طبقه فقیر جامعه لازم دیده است قطع کرده و بر سرمایه شان صرفه جوئی نمایند و در سرزمین بلقا در شام در ابل و قضاعه شوریدند و مانع دادن زکات شدند مسلمانان هم به اظطراب و تشویش افتیدند تا مبادا با رحلت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم شورش های شدید فرصت طلبان، بنیان خلافت نو بنیاد اسلامی را متزلزل نسازد و دبدبه وشوکت عالی مسلمانان را از هم نپاشد زیرا درین فرصت متنبئین هم قدعلم کردند که بعد از پیغمبر بزرگوار اسلام محمد صلی الله علیه وسلم خود را پیغمبر قلم داد میکردند و ازطرف دیگر امپراطور روم در مقابل خلافت اسلامی قرار داشت که همواره بمقابله و مقاتله به مسلمانان امادگی داشت بنا به مشکلات زیاد وافزون شدن شورشها، اکثر مسلمانان به این نظر تاکید داشتند که تا غالب شدن مسلمانان بر اوضاع عمومی نخست از اقدام در مقابل مانعین زکات صرف نظر باید کرد تا بر دیگر شورشیان (متنبئین) فایق ایند و در چند جبهه در گیر نه شده بصورت یکجانبه قوت ها را منسجم ساخته بعد از گوشمالی گروه مالی متنبئین بعد در مقابل دیگر شورشیان داخل اقدام شوند.

اما ابوبکر صدیق (رض) یگانه کسی بود که باقاطعات کامل ایساده گفت: ((او ینقص الدین و انا حی)؟ ایا دین ناقص شود و من زنده باشم یعني یکی از ارکان اسلام که زکات است خداوند (ج) توسط ایت قرانکریم فرض گردانیده وطی ایت متعدد میفرماید: (و اتو زکات) ترجمه: بدهید زکات تانرا این حکم خداوند (ج) ناقص شود و من منحیث خلیفه زنده باشم حتی ان که ابوبکر (رض) در مورد تاکید حضرت عمر فاروق (رض) راجیع به نرمش و گذشت اش در مقابل منکرین و مانعین زکات به وی می فرماید: (حتی انت یاعمر! اجبار فی الجاهلیه خوار فی السلام، والله لومنعونی عقال بعیر کانهو یو دونه لرسول الله لقاتلهم علیه و لا قاتلنهم وحدي ماستمسك السیف بیدي): ترجمه: ای عمر حتی تو که شدید موقف و سخت گیر بودی در جهالت (ان گاهی که تا هنوز اسلام نیاورده بودي) و نرم دلی میکنی در هنگام اسلامیت خود: قسم به خدا اگر منع کنند مرا از گرفتن زکات چوچه شتری که در عهد رسول خدا ان را ادا میکردند، مقاتله کنم باایشان بخاطر ان به تنهای و مقاتله کنم به ایشان تا زمان که شمشیر بدستم باشد حضرت ابوبکر صدیق (رض) با حجت قوی داخل اقدام شده در حق بودن تصمیم و موقفش را با تحصیل قناعت دیگران به میدان عمل کشانید چنانچه حضرت عمر فاروق به موافقت نظر ابوبکر صدیق (رض) و فراهم شدن قناعتش بر ان نظر چنین توضیح میکند (فوالله ماهو الاان ایت الله شرح صدر ابی بکر للقتال فعرفت انه الحق) یعنی قسم بذات خداوند (ج) چیزي نبود جوز ان که دیدم سینه ابوبکر رض را خداوند (ج) برای مقاتله با مناعین زکات فراخ گردانیده و دانستم اینکه او در موقف خود بر حق است.

اخرا ابوبکر صدیق (رض) لشکر تحت قیادت اسامه را با وجود مناظره دیگران در مقابل مانعین و منکرین زکات به تصمیم برگشت ناپذیر و نظریه قوی اش مامور محاربه ساخته مي گوید (والذی نفس ابی بکر بیده لوطننت ان السباع تخطبین ال نفذت بعث اسامه کما امر رسول الله ولولم یبق فی القری غیری لانفذته) ترجمه: قسم بذاتی که نفس ابوبکر صدیق به قدرت او است حتی اگر گمان کنم که پرنده گان گوشهایم را به هوا می بردارند با وجود ان فراستادن لشکر تحت قیادت اسامه را چنانچه رسول خدا امر فرموده اند عملي خواهم ساخت ولو که با پیاده کردن امر در منطقه غیر از من کسی هم باقی نماند با مجهز ساختن لشکر اسامه لرزه بر اندام قبیله های عبس و ذوبیان، غطفان و فزاره انداختند که انها موافقتنامه را پیشنهاد کرده بودند که مسلمانان از گرفتن زکات شان صرف نظر نماید و هر کس در منطقه خود حکمروائی داشته بر دیگري تجازو نکند اما حضرت ابوبکر صدیق در تصمیم قطعی اش پایمردی نموده از دستورات خدا و پیغمبرش اند کی عدول نکرد وبا رد پیشنهاد شان، منکرین زکات با پرستادن لشکر اسامه تا رومار ساخت و حضرت اسامه بن زید با مجاهدین ش پیروز و سربلند به غنایم و اجر برگشت. این نخستین موفقیت بود که بعد از رحلت پیغمبر خدا سبب تسکین و اطمینان قلبي و سرور مسلمانان گردیده قاطعت در ادا مسولیت و حقانیت موضع گیري حضرت ابوبکر صدیق را به همه روشن ساخت.

## متنبئین در مقابل خلافت اسلامی

تا هنوز پیغمبر اسلام از جهان رحلت نکرده بود که بعضي از بوالهوسان چون اسود عنسي و مسلیم بن حبیب خود را پیغمبر جازده و ادعا نبوت نمودند اما مردم

در ان وقت ازحیث تعقل و سنجش ایمان به پختگی رسیده بودند و بطلان دعوت و ادعای میان تهی انها بهمه واضع بود همگی به صفات و ممیزات یك پیغمبر که به حق و از طرف خداوند (ج) مبعوث باشد دانا بود بدین ملحوظ هرچه زود تر کاذبان رسوا شدند و مجال مطرح شدن از انها سلب گردیده بود و بعد رحلت پیغمبر خدا دوتن دیگر مردی بنام طلیحه بن خویلد و زن بنام سجاح بنت رشا نیز با این ادعای کاذبانه برخاستند تاعده از بي خردان و سفیهان را پیرو شان ساخته شخصیت خود را تبارز دهند . بي خبر از اینکه دیگر برای همچو اسطوره های افسانوي و جالی باقي نمانده . و مردان مومن و عاقل پیغمبر را از کاذب بهتر تمیز می کنند .

با باز گشت ظفر مندانه اسامه و لشکرش بعد از گوشمالي دادن منکرین زکات ابوبکر صدیق لشکر مذکور را به یازده لوا تقسیم نموده و در راس هر لوا فرماندهی را انتخاب کرده به مسیر معینش حرکت داد که بعدا نتایج و ثمرات شهکاري ها و فعالیت های قهرمانانه خالد بن ولید (رض) خلافت اسلامی را خوشحال و بیشتر بهره مند ساخت خالد (رض) در راس این لشکر هنگام بسوی منطقه بنی اسد جایگاه طلیحه که خود را پیغمبر جازده بود در حرکت است که فراریان جنگ را ذی القصه از دست حضرت اسامه و لشکرش از مناطق عبس و ذوبیان ، غطفان و فزاره نیز به انجا نزد طلیحه پناه گزین شده بودند و پیروان طلیحه نیز در مناطق طی ، جدیله و غوث و بعضي مناطق دیگري هوای مقاومت ومقابله به لشکریان اسلام را در سر می پرورانیدند ولی حضرت ابوبکر صدیق (رض) در این هجوم وسیع بیش از اینکه بکشتار و جنگ دست بزند به مانور های شدید و قاطعانه اش طوری رعب و تشویش را در دل معاندین اسلام جاگزین ساخت که جز اسلام اوردن چیزي دیگري از انها پذیرفته نمی شد دریـن هنگام که حضرت خالد به لشکرش بر منطقه بزاخه در مسیر بنی اسد سایه افگنده است حضرت ابی بکر عدی بن حاتم را بنا به پیشنهاد خودش نزد قومش می فرستد تا انها بصورت مسالمت امیز را بپذیرند و از اباطل و دنباله روی طلحه بپرهیزند عدی بن حاتم با گرفتن سه روز مهلت به برنامه خود موفق شد و پنجصد نفر جنگی که قبلا با طلیحه بودند نزد خالد (رض) بر میگردد و بدین منوال مردم قبیله طی به هیله اینکه افراد ما برای مقابله با مسلمانان ولشکر خالد دریـن منطقه سنگر های مقاومت را مستحکم کند همه افراد شان را ازنزد طلیحه خواسته ارتباطات خود را از وی بریده اسلام اوردند هدی بن حاتم بار دیگر از حضرت خالد (رض) مهلت را برای دعوت قبیله جدید گرفت و با موفقیت از انجا نیز به یك هزار سواره جنگی نزد خالد (رض) بر گذشت به اساس مشوره قبایل متذکره خالد عکاشه بن محصین و ثابت بن اکرم را برای جستجوی احوال و بدست اوردن معلومات از دشمن مامور ساخت اعکاشه به مجرد رو به رو شدن در مسیر را حبال پسر طلیحه را با شمشیر خود نقش زمین گردانیده و ثابت و عکاشه به مسیر شان ادامه دادند تا با طلیحه وبرادرش سلیمه روبرو شدند و بجان هم افتیدند طلیحه عکاشه را به شهادت رساند و به معاونت برادر خود سلیمه ثابت را نیز شهید ساخت هر گاه خالد به هجومش بر طلیحه و حواریون او داخل اقدام شد با افتیدن چشمانش برجسد عکاشه و ثابت بنا به دیرایت جنگی اش جهت تقویه روحیه لشکر خویش از عدی بن حاتم خواست تا با عدی افراد جنگی و مسلح قبیله طی به لشکر مسلمانان پیوسته سبب بلند بردن مورالی جنگی لکشریان اسلام بشود به شنیدن خبر تسلیمی قبایل طی و جدیله و همکاري شان به مسلمانان طلیحه پریشان حال شده و عزم جنگی اش متزلزل شد و به فکر فرار از میدان جنگی شده اسپ و شتر برای فرار خود و زوجه خود مهیا ساخته و فادار ترین فرماندهش عیینه بن حصن را با تعداد هفتصد جنگجوی که از تابعین او بود مصروف کار نموده با زوجه خود در پی ان شد تا به نحوی از غضب و خشم انان که از مکر وخدعه و کذبش به لجن زار تباهی کشانده شده اند و نزدیك به غرق شدند ساخته نجات حاصل کرده و فرصت فرار را به خود غنیمت شمارد . در اخرین لحظات حساس که جنگ به شدت خود جریان داشت و لشکر یان اسلام به جوش ایمانی وقوت و غیرت مردانگی پیروان طلیحه کاذب را یکی پی دیگري نقش زمین ساخته حواله جهنم می گردانید و انان تاب مقاومت را به خود ندیده و مرگ را حتمی دانسته درین لحظه نزد طلیحه می شتابند تا از وحی منزله پیغمبري دروغین شان بشارت فتح و نصرت را بیابند چند مرتبه طلیحه انان را به تار خام می بندد بدین پاسخ که تا هنوز جبریل بوی نیامده و در اخیر به عیینه بن حصن میگوید.

باقي دارد

# غربي نړۍ او د هغوی اخلاقي فسادونه

"محمد حکیم بشارت"

په اوس وخت کې ټولې کفري او دهري نړۍ او په ځانګړي توګه غرب د مسلمانانو د بې لارې کولو لپاره ډېر پرمخ تللي وسایل په کار اچولي چې له دغې لارې د مسلمانانو نوي ټوکیدلي ځوانان د اخلاقي فساد په ناروغۍ اخته کړي او د هغوی تنکي ذهنونه د اخلاقي فساد په ککړ پرازیټ باندې ولړي.

چې په اوس وخت کې دغه کفري نړۍ د مسلمانانو لپاره په کمین کې پټه ناسته ده ترڅو وکولای شي اړاومحتاج مسلمانان په خپلو شومو او ناروا لومو کې را ګیر کړي. او خپلې غیر اسلامي اوغیر انساني کړنې پرې ومني او بله شومه موخه یې دا ده چې په اسلامي ټولنه کې د اسلامي فرهنګ ثقافت او تهذیب پرځای خپل ناولي فرهنګ ور انتقال کړي. چې په دغه ناولي فرهنګ دوی هڅه کوي چې د مسلمه امت نوی نسل له اسلامي فرهنګ او اسلامي کړنو څخه لرې وساتي.

چې د دغو دسیسو د پلي کولو لپاره یې شپه او ورځ یو کړې. او فکري مبارزه یې پیل کړې او په ځانګړي توګه یې ورته یوه اندازه پانګه بیله کړې ده چې ترڅو وکولای شي د اسلامي ټولنې غوړیدلي ځوانان په خپلو ککړو نظریو او فکري استعمار سره بې لارې او د تیارو په لور سوق کړي.

په دې لاره کې یې یو شمیر کمونست او د یموکراسي غوښتونکي افغانان په دندو ګمارلي دي او پوچ تبلیغات په خپلو ناولو خولو سره کوي.

او غواړي چې د فکري استعمار په وسیله د مسلمانانو او ټوکیدلو ځوانانو اسلامي احساسات او عقیدوي قوه ووژني چې د اخلاقي فساد د خورولو لپاره یې هر ډول هڅې او پروګرامونه په نقشه کې نیولي او د مادیاتو په زور خپلې فاسدې ریښې زموږ په ټولنه کې وځغلوي.

چې په اوس وخت کې دغه غربي ډوله او خرڅ شوي تش په نامه افغانان د هغوی دغې منفي او ناروا نظریې ته غوږ نیسي او د غرب د غلامۍ کړۍ یې په مړو سترګو د څو روپیو په مقابل کې په غاړه کې اچولې چې په مړو سترګو ژوند تیروي. او بیا له ځان سره داسې خبرې زمزمه کوي چې په غرب کې ازادي ده. موږ نه پوهیږو چې دوی څه شي ته ازادي وائي او کومه ازادي بښیي؟ خودلته له دې خبرې جوتیږي چې دوی په اصل کې د ازادي په مانا نه پوهیږي. او پدغې شومې لومه کې نور ورونه هم له ځانو سره ملګري کوي. نو زموږ میړنیو او غیرتي ټوکیدلي ځوانانو ته پکار ده چې له دغه ډول اخلاقي او فکري فساد څخه ځانونه وساتي او خپل ځانونه په ریښتني اسلامي عقیده سمبال کړي

## دلته یوه ((روحاني خلا)) Spiritual Vacuum موجوده ده

دلته ددې جاهلیت په قاموس کې د قلبي ډاډ او اطمینان Emotional Security توری څوك نه پیژني او ماشین د خلکو معبود ګرځیدلی دی. په اتلسمه او نولسمه پیړۍ کې خوله مسیحیت سره یو څه تړاو و.

خو په شلمه پیړۍ کې هغه هم له منځه ولاړ، هغوی دین ته اجازه نه ورکوي چې په عملي ژوند کې یې ځای ونیسي.

هغوی دا ګروهه خپرول غواړي چې ټولې انساني ربړې د کارخانو، تجربه ځایونو او ماشینونو له لارې حل کیدلای شي نو په دې ډول ګواکې دلته ددجال حکومت قائم شوې دی.

(د لیوپولډویس (چې اسلامي نوم یې محمد اسد دی) له کتاب The road To Macca څخه)



# خلافت
## میاشتنۍ




د افغانستان د اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

۱۴۲۱ هـ ق کال د ذوالقعده میاشت
د ۱۳۷۹ هـ لمریز کال د سلواغې میاشت


## لیك لړ

مخ



### خلافت مجله


د تاسیس کال : د وزي میاشت
۱۳۷۵ لمریز کال
پرله پسي دوویشتمه ګڼه
د پنځم کال اوومه ګڼه


### اداره


مسؤل مدیر: محمد وزیر (حامد)
کتونکې ډله
۱ : ملا عبدالحي مطمئن
۲ : محمد الیاس وحدت
۳ : محب الله اسحاقي


### پته


د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
د مجلې دفتر
ټلیفون ، فکس ۲۱۰۴۳۰-۳-۲۱-۹۳ +
۸۳۷۷۰۷ - ۰۸۱ - ۰۹۲ + په پاکستان
کې پوسټ بکس لمبر (۱) چمن


### کلنۍ ګډون


په کندهار کې ۲۰۰۰۰۰ افغانۍ په نورو ولایتو کې ۲۳۰۰۰۰ افغانۍ په پاکستان کې ۲۰۰ کلداري په لیرې هیوادونو کې ۵۰ امریکائي ډالره د یوې ګڼې بیه : ۲۰۰۰۰ افغانۍ یا ۲۰ پاکستانۍ کلداري زده کونکي ته د تصدیق په لرلو سره په نیمه بیه ورکول کیږي



د مجلې د تر لاسه کولو ځایونه : افغانستان
کندهار د اطلاعاتو کلتور ریاست د توزیع څانګه ، کابل د اطلاعاتو کلتور وزارت د توزیع ریاست ، هرات د اطلاعاتو او کلتورریاست د توزیع مدیریت ، بلخ د مزارشریف ښار د اطلاعاتو او کلتور ریاست ، ننګرهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د توزیع مدیریت ، قندوز د اطلاعاتو او کلتور ریاست ، غزنی د اطلاعاتو او کلتور ریاست ، خوست د اطلاعاتو او کلتور ریاست ، هلمند د اطلاعاتو او کلتور ریاست بهرني هیوادونه اسلام اباد افغان سفارت ، پیښور: افغان قونسلګري او دانش کتاب پلورنځی . په کوټه کې صحاف کتاب پلورنځی . او کابل کتاب پلورنځی امریکا نیویارک د اسلامي امارت نمایندګي ، جرمني داسلامي امارت نمایندګي . سعودي عرب جده د افغانستان اسلامي امارت قونسلګري په متحده امارتو د ابو ظبی په ښار کې افغان سفارت .

تخنیکي چارې : د الامارت کمپیوټر اداره ، کمپوزر : نوراغا (شپول) ، چاپ : د کندهار امارتي مطبعه

دريمه برخه

# د وخت ارزښت او ساتنه

د عبدالفتاح ابوغده ليکنه
د محمدوزير حامد ژباړه

**هوښيار بايد له وخت سره زيات غيرت وکړي**

امام ابن القيم رحمه الله تعالى په خپل کتاب (مدارج السالکين) کې د وخت په ارزښت او عموم باندې بحث کړی دی چې ډېرو ځيزونوته شامل دی. په دې ترڅ کې يې له وخت سره د غيرت کولو يا دونه هم کړې ده (۱) دی وايي: له وخت سره غيرت کول ختم شوي دي! او دا غيرت ډېر سخت دی ځکه وخت ژر تيريدونکی دی، اړخ نه لګوي، ستنيدل يې ناشونی دی، د عابد وخت د عبادت او اورادو لپاره وي، او د مريد وخت خدای (ج) ته متوجه کيدل دی، د زړه توجه تولـه د هغه لورته کول دي، وخت هغه ته له هرڅه زيات عزتمن دی. له دا ډول مصروفيتونو پرته په بل څه کې چې د هغه وخت تيرېږي نو غيرت ورته درېږي.

چې يو ځل وخت تير شو بيا موندل يې ناممکن او ناشونی دی ځکه را تلونکی وخت د بل مسؤليت له پاره وي نو چې کله تير شو بيا ترلاسه کول يې ناشونی دی. د وخت ضائع کول خورا درنه خبرده. ځکه چې څوک پوهه شي چې تير شوی وخت بيا نه راګرځي نو زيات غمجن شي. او ډېر پښيمانه شي او په دې وير او پښيما نتيا سره نور وخت هم ځني ضائع شي نو ځکه وايي چې: الوقت کالسيف ان لم تقطعه قطعك. وخت د توري په څير دی که يې پرې نکړې نو تابه پرې کړي. (۲)

نو وخت په خپله هم تيريدونکی دی او هم پريکونکی دی. څوک چې غفلت وکړي هغه خپل وختونه ختم کړل او له زيات تاوان سره مخامخ شو. چې له غمه پرته بل څه به په لاس ورنشي. بيا به يې نو حالت څه ډول وي چې د وخت په تر لاسه ورکولو سره په خپل تاوان پوهه شي! په دې حالت کې که وغواړي هغه تير وخت بيرته لاس ته راوړي نو دا خو ناشونی ده ايا نن ورځي ته پرون را ستنديلای شي؟

(وانى لهم التناوش من مكان بعيد) (۳)

اوس چې دی له څه سره مينه لري هغه لاس ته نه ورځي. دی چې له وخت سره څه ډول چلن کوي دا د هوښيار او عاقل سړي کارندی. اوس چې دی څه غواړي نو امکان نلري چې تر لاسه يې کړي.

فيا حسرات، ما الى رد مثلهاسبيل
ولوردت لهان التحسر!

ژباړه: ای حسرتونو د ضائع شوی وخت په څير ځيز خو نشي تر لاسه کيدای! او هغه ته د ورګرځيدلو لاره خو نشته که چيرته لاره وای نو دا غمونه به اسانه شوی وو.

پيښې ډيري ژر فنا کيږي. له وريځو څخه تيزې دي. وخت هرڅه له ځانه سره وړي تاته يې يواځې اغيزاو حکم په لاس درځي او بس. نو وخت د خپل ځان د ګټې له پاره وکاروه او که نه خامخا به دا وخت ستا په ضرر تماميږي. له دې کبله به نيکو خلکو ته په جنت کې وويل شي:

کلوا و اشربو اهنيئاً بما اسلفتم فى الايام الخالية. ژباړه: (ورته و به ويل شي) خورئ او څښئ په اشتها د هضم سره. په بدل د هغو عملونو خپلو کې چې مخکې ليږلي وو (تاسوای مومنانو) د دنيا په تيرو شويو ورځو کې. او هغو بدبختو ته (چې په اور کې عذاب ورکول کيږي) به وويل شي: ذلكم بماكنتم تفرحون فى الارض بغير الحق وبما كنتم تمرحون.

ژباړه: دغه ګمراهي او عذاب تاسو ته ځکه دررسيږي چې تاسو به په ځمکه کې په ناحقه خوشحالي کولی او ځکه چې تاسو به ناروا او ناحقه تکبر کاوه.

جميع المصالح تنشأ من الوقت
فمن اضاعه لم يستدركه ابداً

ژباړه: ټولي ګټې د وخت زيږنده دي. څوک يې چې ضائع کړي هيڅکله به يې بيانه مومي. همدا راز امام ابن القيم په خپل کتاب (الجواب الكافي لمن سئال عن الدآء الشافي) مخونه ۲۰۸ - ۲۰۹ کې وايي: ډير لوړ او ګټور فکر هغه دی چې خاص د الله او اخرت له پاره وي. اودا ډول فکر ډير قسمونه لري، ......

... پنځم ډول د وخت په وجيبو او مسؤليتونو کې

فکر کول دي .

ټول عزم او همت باید وخت ته متوجه کړل شي . هوښیار هغه څوك دی چې په وخت مین وي که یوڅه ورځخه بیځایه شي نو په دي فکر وي چې ګواکې ټولې ګټې یې له لاسه ووتلې . ځکه ټولې ګټې د وخت زیږنده دي . چې یو ځل ضائع شي بیا نه تر لاسه کیږي .

امام شافعي وایی : ما له صوفیانو سره ملګرتیا وکړه خو یواځې دوه ټکي مې ځني زده کړل . یو دا چې : وخت د توري په څیر دی که یې پرې نکړې نو تا پریکوي . بله دا چې : که ځان دي په حقه لاره بوخت نکړې نو په باطله لاره به لګیا کیږي .

نو وخت په حقیقت کې د انسان عمر دی او د تلپاته نعمتونو د ابدي ژوند له پاره اساس دی . او دا راز په دردوونکو عذابونو کې د تنګ ژوند بنیاد هم دی . وخت په تګ او رفتار کې له وریځو څخه تیز او ګرځندی دی . د انسان کوم وخت چې یواځې او خاص د الله جل جلاله لپاره وي نو همدا یې ژوند او عمردی او له دې پرته نور په ژوند کې نه شمیرل کیږي . که څه هم زیات اوږد ژوند وي .

له دې پرته ژوند او عمر تیرول د څارویو له ژوند سره برابر دی . څوك چې وخت په غفلت ، شهوت پرستي باطلو سوچونو کې تیر وي او دا ارزښتناك وخت په خوب او مهمله توګه ضائع کوي نو ددې کس له پاره له ژوند څخه مرګ ښه دی .

د فایدې او ګټې ژوند یواځې هغه دی چې د خدای (ج) له پاره وي او بس .

**(د خیر په چارو کې د مخکینیو علماو د وخت لګولو حرص)**

پخوانی صالح اونیك سیرته علما اوهغه چې د دوی په پله روان وو د وخت د ساتنې زیات حریصان وو او ټول وختونه به یې له خیر او ښو عملونو څخه ډك وو په هغه زمانه کې عالم او عابد یوډول وو او ټولو دا حرص درلود . یوه ګړی به یې نه ضایع کوله . او په وخت باندې یې زیات بخل کاوه . او زیات حرص یې درلود .

**(لمر ودروه ! څو خبرې در سره وکړم)**

عامر بن عبد قیس خورا لوی زاهد او نامتو تابعي دی یوه ورځ چا ورته وویل چې څه مجلس را سره وکړه . ده ورته وویل : لمر ودروه ! چې کله دې دا کار وکړ بیا به زه خبري در سره وکړم . ځکه وخت له خپل دستور سره سم متحرك او په خوځښت کې دی .

او چې تیر شي هغه بیا نه را ستنیږي . د وخت ضائع کول داسې تاوان دی چې تلافي او جبیره یې ناشونی ده . نو باید ټول وخت له کار او عمل څخه ډك کړل شي . (۴)

**په یوه ورځ تیریدلو باندې د ابن مسعود (رض) پښیمانتیا**

لوی صحابي عبدالله بن مسعود رضی‌الله عنه وایی : په یوه شي هم دومره نه یم پښیمانه او خپه شوي لکه په هغه ورځ چې لمر یې ولویږي اوتیره شي ، زما عمر را کم کړي ، او عمل مې نشي پکې زیات . عمر کمیدل اوعمل نه زیاتیدل ددې لوی صحابي له پاره ترټولو زیاته د خپګان او پښیماني کیسه ده .

صالح او نیك سیرته خلیفه امیرالمؤمنین عمر بن عبدالعزیز رضی الله عنه وایی :

شپه او ورځ په تا کې عمل او کار کوي نو ته په دوی دواړو کې کار وکړه د شپې او ورځ عمل کول څرګند دي چې دانسان عمر لنډوي او ګورته یې نږدې کوي .

**(ای بنادمه ته ورځې یې)**

حسن بصری (رح) رضی الله عنه وایی : ای بنیادمه ته ورځې یې چې کله یوه ورځ تیریږي نو ستا څه برخه هم ورسره ختمیږي او ده به ویل : چې ما داسې خلك لیدلي دي چې دا تاسو چې له دراهمو او دنانیرو سره څومره مینه لرئ د هغوی له خپلو وختونو سره مینه تر دې زیاته وه .

**(حماد بن سلمه به یا حدیث بیانول یا تلاوت ، تسبیح او لمونځ کول)**

حافظ الذهبي په خپل کتاب (تذکرة الحفاظ) لومړی ټوك مخ ۲۰۲ کې د لوی امام او محدث حماد بن سلمه البصري البذار الخرقي په ژوند لیك کې لیکي : حماد د حدیثو او علم النحو نامتو امام و د وخت شیخ الاسلام و او خلکو اقتدا پسې کوله . په کال ۹۱ هـ کې زیږیدلی دی . او په کال ۱۶۱ هـ کې وفات شوی دی دی لومړی کس دی چې د ابن ابي عروبه په ملتیا یې کتابونه لیکلي دي . په عربي ژبه کې زیات ماهر او ښه فصیح و . ژبور عالم و ، د سنتو تابع نیك سیرته او لوی عابد و .

دده شاګرد عبدالرحمن بن مهدي وایی : که حماد ته چا دا خبره وکړی وای چې سبا ته به مرې نو دده ټول وختونه له ښو عملونو دومره ډك وو چې ددې خبري په اوریدو به یې هم څه عمل نه و زیات کړی . موسی بن اسمعیل التبوذ کې وایی : که داسې ووایم چې ما حماد په خندا ندی لیدلی نو رښتیا به مې ویلي وي .

ځکه دی به همیشه مصروف و یا به یې حدیث بیانول ، یا به یې تلاوت کاوه ، یا تسبیح ویل او یا هم لمونځ کول ، ورځ یې ټوله په دې عملونو ویشلي وه .

يونس المؤدب وايي : حماد بن سلمه په داسي حالت کې وفات شو چې په جومات کې يې لمونځ کاوه . رحمه الله تعالى .

## لمن ليك :

( ۱ ) د مدارج السالکين دريم ټوک مخ ۴۹ امام ابن القيم الجوزيه په کال ۶۹۱ هـ کې ددمشق په ښار کې زيږيدلى دى او په کال ۷۵۱ ه کې همدلته وفات شوى دى . ده علميت دده لـه تصنيفـاتو څخـه ښه څرگنديږي په خورا زياتو علومو کې يې تصنيفـات ليکلـي دي . او پـه اسـلامي نړۍ کې په ګڼ شمير سره خپاره شوي دي ملا على قاري پـه خپل کتـاب ( جمـع الوسائل فى شرح الشـمائل ) او ( مرقـات المفاتيح ) کې د ابـن القيـم او د هغـه د استاد ابن تيميه پـه اړه ليکي : څوک چې د ( مـنازل السـائرين ) شـرحه ( مـدارج السالکين ) مطالعه کړي نو ورتـه ښکاره به شي چې ابن التيميه او ابن القيم د اهل سنة والجماعت له لويو علماو څخـه دي او د محمـدي امـت لـوى اوليـأدى . د (تفسير ابـن کثـير ) او ( بدايـه والنهايـه ) مصنف ابوالغداءاسماعيل بن کثـير او د ذيل طبقات الحنابله ) مصنف ابن رجب الحنبلي دواړه نامتو امامان د ابن القيم په خصوصي شاگردانو کې شميرل کيـږي . ( ژبـاړن ) د ابـن القيـم د کتـاب ( اعـلام الموقعيـن ) مقدمـه.د معتصـم بـاالله البغدادي په قلم مخونه ۵ - ۶ څخه

( ۲ ) ابن ابى جمره پـه خپـل کتـاب بهجـة النفوس ) دريم ټوک مخ ۹۶ کې ددې جملي معنى داسي کړي ده : وخت پـه کـار کولـو سره پريکړه څو تـاپـه معطلي او ناوخته کيدلو سره پري نکړي او دا معنى يې هم کيداى شي چې کله ته له وخت څخه دگټې اخيستلو لـه پاره ويښ اوبيدار نه يې نو داسي به له هلاکت سره مخامخ شي لکه څوک چې د توري لـه وار سره مخامخ کيدونکي وي . نو که دا کس د توري له نيولو او له هغى څخه د ځان ژغورلو لـه پاره ويښ او چمتو نه وي نو توره بـه يې پريکړي او هـلاك بـه شي ځکـه وخت د پريکونکي توري او ځليدونکـي بريښنـا په څير دى .

وکن صارما کالوقت فالمقت هي عسى
واياك عـلا فهى اخطرعلةً

ژباړه:
د وخت پـه څير قاطع او پريکونـي اوسـه !
لـه قـهر او تکبر څخه لـري اوسـه ځکـه دا خطرناك رنځ دى .

علماء وايي د وخت ضائع کول د هلاکت نښه ده .

( ۳ ) سـورة سـبا ايـت ۵۳ د التنـاوش معنى د يوه شي تر لاسه کول . پـه ايـت شريف کـې د کفـارو د حـالت خبره بيـان شوي ده . هغه کفار چې پـه دنيـا کـې يې پـه لوى ځبنتن ايمان نه و راوړى . دا کفار نشي کولاى پـه اخرت کـې د توبې ايـستلو او ايمـان راوړلـو موقـع تـر لاسه کـړى او پـه دنيا کې دوي دا کار پـه اسانـي سره کولاى شواى او هيڅ بعـد او لرى والي نـه وپکي خو هلته يې ونکړ .

نو ايا پـه اخرت کـې دوى کـولاى شي دايمـان پـه راوړلـو بريـالي شـي ؟ نـه هيڅکله هم نشي کولاى ځکـه اخرت لـه دنيا څخه لري دى . نو د ايت معنى داسي شوه : څنگه به دوى وکولاى شي لـه دومره لري ځايه ( اخرت ) څخه خپله موخـه تـر لاسه کړى ؟

والله اعلم وعلمه اتم .

( ۴ ) د وخت د قيمت او ارزښت له پاره دا خبر کافي ده چې فقـهاو ثابتـه کـړې ده چې اجل او نيتـه پـه بيعـه کـې د ثمنو پـه مقـابل کـې راتلاى شـي . نـو پـه دې کـې د وخت د قدر ارزښت تاکل شوي دى يعني وخت د روپيو پـه مقابل کې راتلاى شي .

( ۵ ) حسـن بصـري نـامتو تـابعي دى د عمربن الخطاب رضى الله عنـه د خلافـت د دوري دوه کالـه لاپـاتي وو چـې دى وزيږيدو . او پـه کـال ۱۱۰ هـ کـې وفـات شـوى دى . پـلار يـې ابوالحسـن سـيار نوميده او د زيدبن ثابت مريى و . مـور يې خيره نوميـده او د ام المؤمنيـن ام سـلمه رضى الله عنها وينځه وه وايي چې کله دى پـه تى پوري ونو کوم وخت بـه يې چې مور پـه کور کې نه وه ام سلمه رضى الله عنهاً بـه خپل تى تـه واچاوه چې غلى يې کړي خـو ناڅاپه بـه د ام الموفين شيدې ور خلاصي شوى او ده بـه ورودلي .

علماء ليکي : چې دده دا علمي لوړ مقام تر لاسه کول د همدې ام المؤفين د پيو لـه برکته و .

دې نامتو عالم لـه حجاج بن يوسف سره هم ډيـري ډغـري وهلـي دي کلـه بـه چې حجـاج مجلس تـه داخـل شو حسن بصري بـه نـه ورتـه پاڅيدو .

ام المؤفين عائشى رضى الله عنهـا يـو ځل دده خبري واوريدي نـو ويـى ويـل دا څوك دى چـې خـبرى يـې انبيـاو تـه ورتـه دى ! ؟.

ماخذ ونـه : شذرات الذهب،لومړى ټوك مـخ ۲۴۴ . وفيـات الاعيـان، لومړى ټوك مـخ ۲۲۶.رسـالـه المسترشـدين مـخ ۱۳۳ ( ژباړن )




زما ټول ارمانونه او ټولي هيلي زما د تن په وينو او وازګو کې ايشي او خوټيږي زما د رګونو د ويني په هره حجره کې درد او رنځ د خپل عروج پر معراج د بشپړيدو اخري پړاو ته رسيږي زه ددې خاوريني کرې پرمخ د اوسني پيړۍ د پيل د لومړنۍ هراړخيزي تراژيدۍ تر ټولو انځورونو صاف تصوير او انځور يم زه د يوه نړيدلي هيواد د لوټ شويو هستيو . ناپايه سلګيو مرګونو ، ټپونو لوږو او تندو سانده او غمجنه مترنمه چيغه يم .

زه د وير او غم د ناپايه سيند هغه څپه يم چي لا بې تلاطم او ځګن خوځښت د بشري ناورين پر ساحل را چورلي خو پای او انجام يې نه معلوميږي هو ! زه د ناپايه غمونو بې دوا دردونو ، بې انجامه غميزو ، تويهاني ويرونو بې چيغو ژړاګانو تورتمونو او ماتمونو يو مظلوم شاهد يم او زه د نني نړۍ يو مجرم هم يم .

زما جرم هغه حريت دی چې د جام او برګر د شرابي او کبابي درباورنو نه خوښيږي . زه د خپلي خور ، خپلي لور او خپلي وريندارې پر سر د حيا او عزت پوړنۍ اچوم خو د بشر د حقوقو اجاره داران راځخه د کلبونو او تالارونو پر صحنه د فاحشو رقصونه او نڅاګاني غواړي .

ماته وايي خپل حريت د تعيش او تلذذ د بتانو پښو ته واچوه نو زه مجرم يم .

هو زه د بشر د حقوقو مجرم يم !

زما په غاړه کې د صليب په څير نکټايی نه ده ځوړند . زه په خپل کلتور او مذهب پوري نښتي يم زه د خپل ايمان په حکم يوه الله ته تندی پر ځمکه ږدم .

خو دنيا را څخه يوه بله سجده غواړي . هو زه بل چاته سجده نه شم کولای نو زه مجرم يم زه بايد محکوم شم پر ما او زما پر هيواد بايد ددې نړۍ ټولي دروازي وتړل شي ، ځکه زه مجرم يم زما حريت زما جرم دی نو زه مجرم يم . ځکه چې زه دازادی په راز پوهيږم او ما د ازادۍ لپاره په ميليونو ليتره وينه توی کړي ده او د نړۍ محکوم قومونه زما د حريت له دغي سودا څخه د ازادۍ عبرت اخلي ، نو دغه عبرت د شرابونو او کبابونو د کلبونو ستني لړزوي ددغو ستنو لړزيدل تروريزم دی زه تروريست يم ترور جرم دی نو زه تروريست يم او زه مجرم يم نړۍ بايد خپلي دروازي زما او زما د هيواد پرمخ وتړي ، ځکه چې زما په زړه کې له يوه الله څخه د ويري او ډار ځای شته خو نړۍ را څخه د واشنګتن ، پاريس او لنډن له درباورنو څخه زما په زړه ويره را ننباسي خو زه له دغي ويري څخه باغی يم او بغاوت جرم دی ، نو زه مجرم يم . ځکه چې زما په هيواد کې هغه نظام خپل وزر غوړولي دی د کوم نظام په راتګ سره چې يهودي او عيسوي اين جي او ګانې د ډالرو او پونډونو په زور نور له خلګو څخه د هغوی ايمان او اعتقاد نشي را نيولی .

او د آی ايم ايف او جهاني بانك د سود خورۍ لپاره ټولي لارې بندي دي ځکه چې زه او زما مذهب سود ته له خدای پاک سره د محاربې په سترګه ګوري او د نړيوالو سود خورو پر خلاف مورچل ټينګول د هغوی پر ګټو يرغل دی او د يهوديت او عيسايت د پانګوال نظام پر خلاف دريځ غوره کول جرم دی ، نو زه مجرم يم او ددې جرم په بدل کې نړۍ بايد پرما خپلي دروازي وتړي ځکه چې نړۍ د انکل سام په لاس يرغمل شوي ده او زه د يرغمل شوي نړۍ ګيروګانګيرۍ او برم ته توب نه منم .

پريږدئ چې د نړۍ دروازه زما پرمخ وتړل شي پريږدئ چې پر ما وروستۍ وچه ډوډۍ هم بنده شي . پريږدئ چې زما د زخمونو لپاره اخيرنۍ دوا هم پر ما قحط شي ، خو زما ايمان به بدل نشي زه پنځه وخته خپل خالق ته سر ټيټوم او زه له خپل خالقه څخه مرسته غواړم .

ايك نعبد و ايك نستعين .



## غزل

جلال خپلواک

شاعر سړی یم د هنر غشي په لاس کې لرم
کټ مټ په شان ستا د نظر غشي په لاس کې لرم
ښکار پرې هیڅ نکړم د همزولي یار قاتل به راشي
دا ځیني ځیني بختور غشي په لاس کې لرم
ستا په سلګونو توري شپې لکه کېږدی د غلیم
زه په زرګونو لکه لمر غشي په لاس کې لرم
هغه د ستورو غونډي سپین د ستورو غل پرې ولم
وړاندي هم تلی شي زورور غشي په لاس کې لرم
ستا څه ګومان وو ؟ ته د سرله غشو اوباسه لړ
تیار په نښو برابر غشي په لاس کې لرم
همیش به مات زما په وړاندې وي تندي د ظالم
څو چې د ښکلي پیغمبر غشي په لاس کې لرم
جلاله دا به یې جانان یواځیني نښنه وړي
په وینو سره د خپل پرهر غشي په لاس کې لرم



نورشاه نوراني

نبه شوه خدای راکړي په دعا او په سوالونو باندي
ماتل غوښتي پر نازولو زیارتونو باندي
د سولي تړي وو زموږ دا جنګ ځپلي زړونه
د استقرار شراب مو څښل پر جامونو باندي
زما کورګي ته چې راتلي ای شهزاده دامن
ما بدرګه کړي په ګلونو تکبیرونو باندي
اوس جوړوم ورته امساوي د چینار له څانګو
خدایه شپونکی ورور مې ختلی په ماینونو باندي
بنګړي یې مات وو د شهید ورور د مزار د پاسه
د بیلتانه ګرد یې وو پروت پر مړوندنو باندي
خالقه وچ یې کړي لاسونه تر څنګلو پوري
چې د ګل څانګي غوځوي څوك په قبرونو باندي
نوراني پام د هر شهید هیله په تا پوري ده
خاوري ونه شیندي پر ګل ګل ارمانونو باندي

## غزل

ستا خوږو یادونو مې هجران شاعرانه کړ
زما تپي زړګی یې په ایمان شاعرانه کړ
د نغمو او د سندرو یې ور وښود
یوه تېوته زړګی و ، خو جانان شاعرانه کړ
ورځ وه رڼا ورځ وه ، شین اسمان و بې اثره
شپه شوه رڼو ستوریو شین اسمان شاعرانه کړ
ستا سپیڅلي حسن یوه سپیڅلي تحفه راکړه !
سترګو کې زما یې ټول جهان شاعرانه کړ
نښه دي چې وویشتله لړ شانته موسکی شوې
جنګ د سترګو جنګ دی په یو آن شاعرانه کړ
حسنه ((سترګ حسنه)) پرستش دي په نغمو کړم
ستامي د بدرنګ ژوند هر ارمان شاعرانه کړ

رحمت الله (کوثر) پیښور

شیراحمد (بریا)

غم او خوښي لکه چې وروړ او خور وي
او د یو کور ماشومان
دوی سره لوبي کوي
خو هیڅ خندا نه کوي
او ژړا هم نه
نه اغونډي نوی جامې
لکه یتیم ماشومان
د دوی اختر هم نشته
او لاسونه نه سره کوي

# درد فقر

ای مسلمانان کمك از بهر مسکینان کنید — خویشتن را پای بند ایه قران کنید

تا بکف دارید ثروت باید از بهر خدا — درد فقر مستمندان را شما درمان کنید

ناتوان را دستگیري همت و مراد نگیست — همره بیچاره کان از جان ودلی احسان کنید

از طریق بخشش و خیرات و از انفاق مال — میتوان یك شمه از عصیان خود جبران کنید

ارزو دارم بمانید از بلاها درامان — صدقه را از بهرجان خود بلا کردان کنید

گر بد نیا می نمائید همچو اعمال نیکو — میشود کسب رضای حضرت رحمان کتید

بشنو از خادم برادر محض از بهر خدا
رحم بر حال مساکین از دل و ازجان کنید




زړه مې ماشوم غوندي په چیغو چیغو
راته ژړیږي هیڅ تسل نه مني
چا د شهید اشنا پرې کړی زیری
ځکه کوګل کې نور تکل نه مني
هسك د خوښی مې د فراق زلزلو
وران او ویجاړ کړ جوړیدل نه مني
خیال که انځور مې د اشنا پریوتی
هیڅ مې سپېرې شونډي خندل نه مني
(حماده) نور مې د خوښی ګلونه
خزان تالا کړه سپړېدل نه مني

## د وخت اتل ته

ته اتل د زماني یې اتل ځوانه
د غلیم مخي ته دانګي قهرمانه
پر وطن باندي دي ځان او مال قربان کړ
د یتیم پر سر سایوان یې طالب جانه
تا زخمي زړو ته کرار د امن راوړ
ته تکور د خوږو زړو یې هم درمانه
تا د وخت ظالم ته ورکړو ځوابونه
له کړاو نه افغانان شول په امانه
د جانان په قدم خي الله دي مل شه
(نظري) لاس په دعا یې عالیشانه




**سیف مومند میرانشا**

چې راوختې مابنام کښې، مخ تا بان د بام په څنډه
لکه سپانده ستا ښایست ته، شوم رقصان د بام په څنډه

چا ګلچین د ٬٬ دمه کړي د سپوږمۍ، په بدرګه کښې
ترېنه پاتې ترمې، ترمې، څوګلان د بام په څنډه

لاس د وصل که رانه کړې، لاړم، ولویدم، ګوزارشوم
په یوه پښه باندي ولاړم، د هجران د بام په څنډه

د هجران په تروږمۍ کښي، غلې راشه سپوږمۍ مخیه
ننداره د ستورو، وکړه، د ګرېوان د بام په څنډه

د ښکلا شاپیرۍ راشي، د غزل جامې اغوستي
ترنم کښې راته وایي، خوږ داستان د بام په څنډه

ښاپېرك د جنګ پټ شوی، په غارو د هندوکش کښې
لمر دامن په ځلا دی، د افغان د بام په څنډه

د جانان پري کړي نوك دی، د شفق په دسماله کښې
هلال نه دی چې لیدای شي، د اسمان د بام په څنډه

چې سهار او مازیګر یې، په خپل لاس اوبه کولای !!!!
سیفه کاشکي ! تور ببری واخ، د جانان د بام په څنډه

۲

# د عبرت درسونه

د خواځك ژباړه او تولونه

## حضرت عمر د خپلي سختي په اړه څه وايي

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه چي کله خليفه شو نو چا خبر ورکړ چي خلك ستا له سختی څخه په ويره کې دي. نو ده خلك را جمعه کړل او تقرير يې پيل کړ له حمد او ثنا وروسته يې وويل : زه خبر شوی يم چي خلك زما له سختي څخه په ويره کې دي . او زما له کروړ طبعيت څخه ويريږي . هغوی وايي حضرت عمر هلته هم له موږ سره سختي کوله چي رسول الله (صلی الله عليه وسلم) زموږ په منځ کې موجود و . او هلته يې هم له موږ سره سختي کوله چي ابوبکر الصديق (رضی الله عنه) زموږ خليفه و . اوس خو واك ټول دده لاس ته ورغی نو خدای (ج) خبر دي چي دده د سختی به څه حال وي . نو واورئ چاچي دا خبر کړی ده ربښتيا يې ويلي دي . زه چي کله له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وم نو د هغه مريی او خادم وم. تر دي چي هغه کله رخصت کيدو له ما څخه راضی و او په دې معامله کې زه په ټولو خلکو کې نيکمرغه يم . بيا ابوبکر خليفه شو نو زه د هغه خادم او مرستندوی وم ما خپله سختی د هغه له نرمی سره ګډه کړي وه . او تر هغه وخته پوري به وتلی توره وم څو به هغه په تيکي کې نه کړم . تر دي پوري چي هغه الحمدالله په داسي حالت کي رخصت شو چي له ما څخه راضي و . او په دې معامله کې زه په ټولو خلکو کې نيکمرغه يم اوس ماته ستاسو کارونه را وسپارل شوو په ياد ولرئ اوس به دا سختي څو چنده نوره هم زياته شي خو دا به يواځي د هغه چا له پاره زياته وي چي په مسلمانانو ظلم او تيری کوي او هغه خلك چي ديندار ه ، ربښتوني . او دروغ فکر خاوندان وي له هغوی سره به زه د هغوی له خپل ځانه هم زيات نرم يم هو ! څوك چي ظلم اوتيرئ کوي هغه به تر هغه پري نږدم څو يې چي يو مخ په ځمکه او په بل پښه نه کيږدم او توبه پري وباسم خلکو تاسو په ما حق لرئ چي ستاسو اجتماعي ګټي به يوه دانه هم نه ضائع کوم او تاسو دا حق هم په ما لرئ چي تاسو له هلاکت څخه وژغورم . او چي د مسلمانانو په خدمت کې تاسو وتلی ياستئ ترڅو چې خپلو کورونو ته راستانه شوی نه يئ نو زه به ستاسو دزامنو پلار يم دا خبري يې وکړي او د ځان او هغوی له پاره يې د ښښني او مغفرت دعا وکړه

( د کمال الدين الدميري ( حياة الحيون ) لومړی ټوك )

## په بيت المال کي احتياط

يو ځل حضرت علی بن ابی طالب ( رضی الله عنه ) د خپل امارت په زمانه کې يوه خطبه وويله په هغه کې يې داسي وويل : ای خلکو ! زما دی په خدای (ج) قسم وي چي ما ستاسو له مال څخه نه ډير شي راخيستي دی او نه کم شي . پرته له دې شي : جيب ته يې لاس کړ يوه شيشه يې را وکيښله چي په هغه کې عطر او څه خوشبويي وه . حضرت علی وويل : دا ماته يوه دهقان تحفه راکړي وه له دې وروسته بيت المال ته ولاړ او هغه شيشه يې بيت المال ته وسپارله او دا شعر يې وويل :

افلح من كانت له قوصرة(١)
يأكل منها كل يوم تمرة

ژباړه : هغه څوك کامياب دي چي د لرګي يو د بلي ولري او له هغه څخه روزانه خورما خوري .

( ١ ) قوصره د لرګي وړوکي ډبلی ته ويل کيږي چي د خوراك له پاره خورما پکي اچول کيږي .

د مولانا ابوالحسن علی الندوي له کتاب ( المرتضی ) څخه

## د محمدي امت نامتو زاهد

مشهوره خو داده چي اويس قرني د امت وتلی زاهد دی . څوك بيا مالك نبيی . او څوك نور د تصوف نامتو لويان نبيی . خو علما ليکي چي عمر بن عبدالعزيز تر ټولو لوی زاهد دی او له دنيا سره يې هيڅ مينه نه وه او دا خبره کړه هم ده ځکه دوی وايي چي دی داسي زاهد وچي ازمويل شوي و ټوله دنيا لاس ته ورغله او ددنيا ترټولو لوی ځواکمن باچا شو خو بيا يې هم له دنيا څخه مخ واړاوه او زهد يې غوره کړ . خو همدا خبره يوه ورځ د همدې عمر بن عبدالعزيز په مجلس کې ياده شوه چي څوك لوی زاهد دی نو ده وويل : ( ازهد الناس فی الدنيا علی بن ابی طالب ) په نړۍ کې تر ټولو لوی زاهدی علی بن ابي طالب رضی الله عنه دی

المرتضی ج١ : ٣٠

## د حضرت علي دري طلاقونه

ضرار بن ضمره وايي چې حضرت علی به په توره شپه کې تور څادر واغوست او د جومات په محراب کې به په داسي حالت کې ولاړو چې خپله ږيره به يې ټينګه په لاس کې نيولي وه ژړل به يې او له ژړا به داسي ريږديده لکه سخت زهرلرونکي مار چې سري چيچلي وي. ګواکي زه اوس هم دده اواز اورم چې ويل به يې.

ای دنيا ته ماګير کول غواړي او له ما نه اميد لري. څو ماته هيڅ اميد مه کوه. له ما پرته بل څوك دوکه کړه زه تاته"دري طلاقه" درکوم چې د بيا د رګرځيدلو امکان ختم شي. ستا عمر لنډ دی. ستا بريالیتوب سپك دی ستا خطري خورا لويي او ويرونکي دي. اه دلاري توښه څومره کمه ده! او سفر څو مره اوږد دی!! او لاره څنګه خالي ده - المرتضی مخونه ۲۹۹ - ۳۰۰

# يواځې شريعت کافی دی

حافظ ابو شامه المقدسي وايي - نور الدين الشهيد خورا صالح او نيك سيرته انسان و او د اسلامي نړۍ په باچيانو کې دده په څير انسانان ډير کم پيدا کيږي کوم وخت چې ده واك تر لاسه کړ نو د مسلمانانو حالات بيخي زيات خراب و او بده اخلاقي ډيره زياته وه. نو د حکومت پوهه خلك په دې فکر شول چې څه ډول رعيت اصلاح کړي. اخر دوی په دې فکر شول چې حالات خورا خراب دي مجرمينو ته په شرعی سزا ورکولو سره اصلاح نشي راتلای او يواځې په شرعی حدودو سره فسادات نشي له منځه تلای نو له شرعي حدودو سره سره بايد ځني سخت سياسي احکام جاري کړل شي څو امنيت ټينګ او سموالي راشي نو دوی وويل چې علامه شيخ عمر الموصلي باچا ته

مخکي تر واکمني هم ډير نږدې وو بايد دوی دا خپله رأيه او نظر هغه ته ورسوي هغه ته چې کله ددوی دا رأيه ورسيده نو هغه هم خوښه کړه او باچا ته يې داسي توصيې وليکلي. مجرمين بايد مخکي د هغوی د جرم له شرعی ثبوت څخه هم ووهل شي او په دې اړه بايد نور ياخه قوانين هم اجرا کړل شي. د شيخ عمر الموصلي دا توصيه چې کله ملك نورالدين شهيد ته ورسيده هغه يې له لوستلو وروسته د کاغذ په شا ورته وليکل چې هيڅکله به د جرم له ثبوت پرته يوه کس ته هم سزا ورنکړم او د مجرم په سزا کې به هيڅکله تخفيف ونکړم او که ستا په ليکلی توصيه عمل وکړم نو بيا به داسي شی چې ګواکي زموږ عقل د خدای (ج) تر علم څخه زيت دی (العياذ بالله) او که د

خلکو د اصلاح له پاره همدا شريعت کافي نه وای نو بيا يې ولي خپل وروستی پيغمبر په دې شريعت سره مبعوث کړی دی؟ نوموړی باچا د شيخ عمر توصيه له دی ښکلي او پور محتوی ځواب سره بيرته هغه ته ور وليږله. کله چې شيخ ته د باچا ځواب ور ورسيدو نو ژبنت زيات يې وژړل او ويې ويل: ای زما بدمرغی! لازمه خو دا وه چې دا د باچا خبره ما کړې وای خو اوس خبره برعکس شوه. نو له خپلي توصيې څخه يې توبه وايستله اوباچا د شريعت قوانين پلي کړل په لنډ وخت کې ښارونه اصلاح شول، امنيت ټينګ شو او فساد له منځه ولاړ داسي مثالي امنيت رامنځته شو چې که يوه ډيره ښائسته ښځه په يوه سر له ډيرو ګران بيه ګاڼو سره د ټول هيواد له يوه سره بل سرته تلای نو نه به يې چا مال ته بد کتلي و او نه ناموس او عزت ته دی نامتو باچا خورا لوی لوی کارونه کړي دي چې د تاريخ کتابونه پري ډك دي او له شام او مصر څخه يې صليبيان هم شړلي دي - فرحمه الله تعالی رحمة واسعة (د امام محمد زاهد الکوثري له کتاب (مقالات الکوثري) مخونه ۹۰ - ۹۱ څخه

لیکوال: علامه شکیب ارسلان
ژباړن
محب الله عصمت

# په اروپا کې د مسلمانانو تاریخ

عرب او بربري مسلمانان په کال ۹۲ هـ کې د ستر غازي او تکړه مجاهد طارق بن زیاد چې دی خپله هم بربري وو او د موسی بن نُصَیر له وتلیو افریقائی قوماندانو نه وو له دوولسو زرو ۱۲۰۰۰ مجاهدینو سره د هغه تنګي نه تیر شول چې د اسپانیې او مراکش ترمنځ پروت دی اوس یې جبل طارق بولي او په کم وخت کې یې ټوله اسپانیه او اوسنی پرتګال فتحه کړل ډاکټر ګوستالوبون فرانسوی په خپل کتاب (تاریخ تمدن اسلام) کې لیکلي: د مسلمانانو د بریو په وخت کې د ګت او لاتین قبیلو په حکومت کې زیات رول درلود ـ خو چې د وخت واکمن ورسره ښه سلوک نه کاوه نو دوی د هر فاتح د راتګ لاري څارلي ولي خو خپل ارزښت یې په همدې وخت کې زیات له لاسه ورکړی و و د حکومت وضعه ورځ په ورځ خرابیده تر داسي حده چې د لښکر قوماندانانو او سردارانو هم یو پر بل اعتماد او باور نه کاوه ځکه په ګت قوم کې سلطنت او پاچهي انتخابي وه او هر یوه غوښتل چې د سلطنت دغه تاج دي دده پر سر شي همدا لامل وو چې هر وخت ددوی او نورو قومونو او پخپله ددوی ترمینځ رقابتونو او جګړي پیل شوي، په نتیجه کې یې دهیواد اقتصادي حالت د رکود سره مخ کړی وو د ګت د قوم وضعه همداسي خرابه وه چې کله اسلامي مجاهدینو همدا ملک ونیوی ددوی ترمینځ قبیلوي شخړي دي اندازي ته رسیدلي وي چې د اندلس د سردارانو نه دوو تنو د حملي پرمهال د مجاهدینو ننګه وکړه چې یو" کنت ژولي ین" او بل" اسقف اعظم اشبیله" وو د مجاهدینو فتوحات په چټکي پرمخ تلل د لویو ښارونو ټولي دروازي ددې فاتح لښکر په وړاندې خلاصې شوي وي، بلکه قرطبه، غرناطه او طلیطله چې د مسیحیانو پاخه مرکزونه وو د مجاهدینو په لاس فتحه شول پنځه ویشت ایالتونه مجاهدینو ونیول مسلمانانو د اندلس د اوسیدونکو سره د شام او مصر په څیر چلند کاوه د خپلو مالونو او عبادتځایونو واك دوی ته ورکړشوی وو او همدا راز په قضائی امورو کې دوی خپلو کشیشانو ته مراجعه کوله او خپل مشکلات به یې د خپل مذهب سره سم حل کول او کلنی جزیه یې مجاهدینو ته ورکوله چې د شتمنو لپاره ۱۵ فرانك یو دینار او دبې وزلو لپاره نیم دینار وه جزیه ډیره کمه وه چې دوی هم د کوم تحدید نه پرته ومنله د اسلامي لښکرو په مخکي اوس د یوځو یاغی سردارانو سره لا مقابله پاته وه "فلیب حتی" په خپل کتاب تاریخ تمدن اسلام و عرب صفحه ۳۲۹ کې لیکي د مسلمانانو د فاتح لښکر لاره د جنوب لویدیځ لورته دایبري جزیري ته وه په همدې جزیره کې د مسلمانانو اتل ځواك اخرینی پریکنده جګړه وکړه چې پایله یې په اسیا کې د مسلمانانو پرمختګ او د ترکستان نیول شول.

## په اسپانیا کې د اسلامي تمدن بیلګه

مسلمانو او اروپائی تاریخ پوهانو چې د مسلمانانو بریاوي څیرلي په دې سره متحد دي چې د اسلامي تمدن پرمختګ په اسپانیا کې د غربي ملتونو او مسیحی اروپا د علمي او صنعتي انقلاب باعث شو. دا یو ښکاره حقیقت دی چې فلسفه، او ادبیات جغرافیه او ریاضي او نجوم ټولي علمي او فني څانګي د اسپانیې او فرانسې د جنوبي برخو او د سویس او

ایټالیا په مسلمانانو پوري تړلي وي اروپا د غفلت او بې خبرۍ په خوب ویده وه ، یوه پرانسوي تاریخپوه لیکلي دي چې د اروپا هر راز تمدن او پرمختګ د مسلمانانو له راتګ سره سم پیدا شو لیکوال زیاتوي د مسلمانانو چال چلند د هغو سیمو د اوسیدونکو سره داسي و چې ساري یې نه موندل کیږي .

ډاکټر ګوستالوبون فرانسوي په اروپا کې د مسلمانانو عظمت ته داسي کتنه کړي ده د اندلس ابادي او تمدن د ویزیګوتیانو په دوره کې داسي وو لکه د یو وحشي قوم تمدن مسلمانان د خپلو بریاوو په پای کې ابادي ته داسي وده ورکړه چې د څو کلونو په موده کې یې ټولي شاړي ځمکي ابادي کړ ي لوړي ښنګلي او عمارتونو یې جوړ کړل او د نورو شاوخوا قومونو سره یې تجارتي اړیکي پیل کړي . اوروسته یې د علم پراخوالي او تمدن ته مخه کړه لاتیني او یوناني کتابونه یې وژباړل علمي او ادبي غونډي یې جوړي کړي . چې بیا تر ډیره اروپایانو ګټه تري اخیستله .

**په اسپانیا کې داسلامي تمدن پرمختګ**

د عبدالرحمن اول له وخت نه چې په اندلس کې د ختیځ د واک ګدی نسکوره شوه او د قرطبه خلافت راغی په کال ۷۵۶ میلادي کې د عربو مسلمانانو پرمختګ اوج ته رسیدلی وو چې تردري سوه ۳۰۰ کاله پوري د علم او پوهي د ویاړ تاج د قرطبي پر سر وو د اسلامي تمدن ځانګړنه یوه دا وه چې په هره سیمه کې یې مدرسي کتابخاني ، بانګونه علمي او ادبي غونډي جوړي کړي د نورو مختلفو ژبو کتابونه یې را وژباړل هندسه هیئت ، طبعیات او طب ته یې زیاته ګټه ورسوله چې ددوی خیړني په پرمخ تللیو علومو کې د نویو انکشافاتو سبب شوي تجارت په پراخه پیمانه وده وکړه معادن او د سلاح جوړوني کارخاني جوړي شوي ، وریښم، یخ شوي پوستونه او شکري په زیاته پیمانه موندل کیدي او یهودو بر بریانو چې د هغه وخت شتمن سوداګر وو د افریقي شمالي برخو ته وړل . د مسلمانانو کرني ته زیاته پاملرنه وه چې د اندلس په حاصلخیزه ځمکه کې یې نی شکر ، توت ، پنبه ، کیلي او وریځي وکرلي . او په ټول اندلس کې یې د هغي ځمکي نه پرته چې یوه سپیره بیدیا وه داشیان وکرل . مسلمانانو په ټولو علومو کې خپله پوهه پکار واچوله په عام المنفعه او بیا جوړوني کې یې د رومیانو مثال راپورته کړ او په اندلس او شاوخوا ښارونو کې یې څلور لاري ، پلونه ، روغتونونه ، هوټلونه او مسجدونه په زیات شمیر جوړ کړل . کله چې کزیمنس غرناطه د مسلمانانو نه ونیوله د مسلمانانو ټول کتابونه یې وسوځول . کزیمنس ډیر متعصب وو د فردیناند په وخت کې یې په طلیطه کې د اسقفا عظم ځای درلود . د مسلمانانو اتیا زره ۸۰۰۰۰ جلده کتابونه یې اورته واچول ده فکر کاوه چې د مسلمانانو اثار مې د وخت له صفحی نه نیستی کړل خو دی بې خبره وو چې د مسلمانانو نور یادګارونه هم شته چې د تجارت وده د اسیا او افریقا سره او د حکومتي نظام چلول وو .

ترڅه وخته ټول منځني بحر ( مدیترانه ) د مسلمانانو په لاس کې وه مسلمانانو د خپل واک پرمهال داندلس هیواد د علمي او اقتصادي پلوه داسي پرمخ کړ چې د ټولي اروپا د ویاړ تاج یې ګڼلی و. دا پرمختګ یوازي په مالي ځانګه کې نه وو بلکه اخلاق هم ورسره همداسي ښه شول چې د زیاتو هیوادو اوسیدونکو به د ښو اخلاقو مثال د اندلس په خلګو کاوه . کوم چا چې اسلامي تاریخ کتلي له موږ سره به پدې خبره توافق ولري . د هغو تاریخپوهانو نه یو میسو سندیلوده چې لیکي . مسلمانانو په هغه وخت کې له اخلاقي پلوه پرمسیحیانو برتري درلوده او په زیاتو وجوهاتو مسلمانان پر مسیحیانو ښه وو . د مسلمانانو سخا ، عدل قرباني او ځان تیریدنه دومره زیاته وه چې په نورو قومونو کې یې بیلګه نه لرله . او دوی انساني نوعی ته زیات د قدر په سترګه کتل . مسیحی پاچهانو دومره د مسلمانانو پر میلمه پالني باور درلود چې د قسطلي او ناوار نه به د درملني لپاره د مسلمانانو ښارونو ته راتلل . ګوستالوبون فرانسوي د مسلمانانو د یادګارونو په اندلس کې مثال راوړی ده لکه په طلیطله کې ښکلي ښارنو ، دالحمرا مشهوره ماڼی ، د ښنګلو مسجدونه جوړول لکه د قرطبي لرغونی جامع جومات او اشبیلي د ښار جوړونه چې زیات مالي لګښتونه پرې وه شول . د هغه وخت مشهور علماو او تکړه ادیبان به د اندلس د خلیفه په دربار کې هر وخت راجمع کیدل ښکاره خبره ده چې د اندلس د دارالخلافه علما د علم او هنر سرچیني وي . د نړۍ ټول پاچهان او سلاطین باید ددوی د اخلاقو ، علم پالني تمدن نه درس واخلي .

د هندو سلاطینو د یوه پاچا د ماڼۍ پرځنډه د طلا په اوبو لیکل شوي وو

*اګر فردوس به روی زمین است*

*همین است و همین است همین است*

فرانسوي تاریخپوه ګوستالوبون په خپل

باقي په ۴۳ مخ



## سرمقاله

# پر اسلامي روح د کفري وسوسو يرغل

غربي تهذيب د انساني تاريخ تر ټولو ځواکمن ، او خورا پراخه تهذيب بلل کيږي . دا تهذيب د هغو اسبابو او عواملو يوه قدرتي پايله ده چې څه موده کيږي په تاريخ کې يې خپل کار کاوه .
او په مناسب وخت کې په دې نوي شکل کې د ښکاره کيدو له پاره سترګي په لاره وو . داتهذيب له ژوند او نشاط ، عزم او حوصلي ، او زياتي ترقي څخه برخمن دی فکري نظامونه ، سياسي او اقتصادي فلسفي ، اجتماعي ، طبعي او عمراني علوم لري . دا راز د هغه مخصوصو او ځانګړو تجربو يوه عجيبه مجموعه ده چې لويديځ والو قومونو د خپلي ارتقا د اوږده سفر په مختلفو مراحلو کې ترلاسه کړي دي . دا تهذيب د طبعي ، تخنيکي او رياضي علومو د مفکرينو د پرله پسي کوښښونو او تجربو غوړچنې او خلاصه ده . دا تهذيب بلا استثنا په ګرده نړۍ کې د يوه مهيب سيلاب په څير خپور شوی دی . او د بشري ټولني هر فرد نر او ښځي يې ټول متأثر کړي دي . ډيري ټولني او ګڼ شمير تهذيبونه او فرهنګونه يې هضم کړي دي . او دا راز ګڼ شمير نظامونه يې هم له منځه وړي دي . او دا به هم ووايو چې دي تهذيب د بشريت د هوسايني او سوکالي له پاره خورا په زړه پوري کارونه هم کړي دي . ګرده نړۍ يې په يوه کلي تبديل کړي ده . او ټول نړيوال يې د کمپيوټر په سکرين سره رايو ځای کړي دي . خو له دي خبري به هم څوک انکار ونکړي چې دا ټولي سوکالي او بشري هوساينې يې په داسي زهرو لړلي دي چې له بشر څخه يې د نجات لار ورکه کړي ده . او د بشريت له پاره يې دومره ستونزي زيږولي دي چې اوس يې د مخنيوي لاري چاري د همدې تهذيب له سر لاريو څخه هم ورکي دي فحاشي او عرياني ، د ښځو بې بندوباري ، زنا او بې حيايي ، د طلاق او بې پلاره او لادونو ډيريدل ، د کورنی نظام له منځه تلل ، بد اخلاقي او لوټماري ، د ايډز لعنت او داسي نور . . . . دا هغه ستونزي دي چې غربي تهذيب زيږولي دي . او نن د همدې ټولنو له پاره جدي پرابلمونه بلل کيږي دوی چې د هرڅه د حل له پاره انساني فکر کافي او بس بولي غواړي دا ستونزي هم په خپل فکر سره هواري کړي خو - خيال است و محال است و جنون .
زموږ په فکر ددي ستونزو اصلي لامل د همدې تهذيب فکري ارتداد او له ريښتوني مذهب څخه بغاوت دی . دا تهذيب چې په نطفه کې لاد کليسا له نادودو او ناخوالو سره مخامخ شوی و اوس هم د هر مذهب ( پرته له څه توپير ) مخالفت کوي او دښمن يې بولي . اوله يوه مخه يې د مذهب او مذهبيانو په نابودي پسي را خيستي ده . او په ځانګړي توګه اسلام په هيڅ صورت نشي زغملای ځکه د ژوند په دې ډګر کې پخواني مذاهب ټول له منځه تللي دي . اسلام يواځني دين دی چې په اوس وخت کې ددیني او اخلاقي دعوت علمبردار دي . او يواځني دين دی چې د انساني ټولنو ستونزي حل کولای شي او د ژوند کړنلاره يې لري او بل دا چې د اسلام تر واک لاندي سيمي خورا زرخيزه او له خامو موادو ډکي دي . او اسلامي هيوادونه خورا په زړه پوري جغرافيايي موقعيت لري . نودی مادي او تخنيکي تهذيب که څه هم په دې سيمو کې د خپلو ګټو ډير کارونه کړي دي . خو لا يې له خپل ستوني څخه تير کړي ندي . او په دې مرو ايرو کې داسي سپرغۍ ويني چې هسي نه يوه ورځ په داسي لمبو بدلي شي چې بيا دوی پکي وسوځي . او په دې لوی او مړ ژوانده بدن کې يوه داسي روح لاپاتي بولي چې دوی د ارام خوب کولو ته نه پريږدي . بناءُ مختلفي وسوسي په زړونو کې لري او ګڼ شمير دسيسي عملي کول غواړي په دې ترڅ کې هغوی د مسلمانانو ځوان نسل بيلاري کول غواړي او غواړي په بد اخلاقي او فحاشي کې يې راګير کړي . څو په دې سره عيش پرسته او تلذذ خوښوونکي وګرځي . چې بيا به طبعاً د جهادي سنګرونو رهبري او ستوماني نشي ګاللی .
او د مسلمانانو له جهادي سنګرونو څخه کښينستل او شا ورګرځول د هغوی له اجتماعي مرګ او له منځه تللو سره

# د ختنه کولو ګټي

محمدوزیرحامد

## ختنه او نوی سائنس

د امریکا د یوې طبي مجلې د مارچ او مئ ۱۹۹۰ء ګنې د ختنې په اړه په یوه مضمون کې راغلي دي چې له ۶۱ء نه تر ۸۵ء پورې په سلوکې امریکائی ماشومان له زیږیدو وروسته ختنه کیږي .

دا په داسې حال کې چې یهود او مسلمانان په امریکا کې ډیر کم دي نو معلومه شوه چې عیسایان هم ختنه کوي داسي ولي کیږي ؟حالانکې عیسایان خو ختنه نه کوي او اروپائی عیسایان د ختنې دښمن دي دا ځکه چې په امریکا کې د ماشومانو وتلي ډاکټران د ماشومانو په ختنه کولو ډیر زور اچوي او ټینګار کوي چې له زیږیدو وروسته باید ماشومان خامخا ختنه کړل شي .

ختنه کول په اسلام کې سنت فعل دی او دا له فطري امورو څخه بلل شوی دی او آن دا چې ابراهیمی سنت دی . د نوی سائنس نویو څرګندونو ایله اوس ددې فطري سنت ګټې وپیژندلې او د ختنه کولو عمل یې ګټور وباله د ختنې په اړه په نړیوالو طبي خپرونو کې نوی انکاشفات تر سترګو کیږي او په دې اړه یې زیات مضامین خپاره کړي دي .

### ختنه ( Circumcision ) په اسلام کې

بخاري او مسلم له ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ویلي دي پنځه څیزونه له فطرة څخه دي ۱ ختنه کول ۲ له نو لاندې ویښتان صفا کول ۳ بریتونه لنډول ۴ نوکان پریکول ۵ او د تخرګونو ویښتان پاکول . امام احمد بن حنبل له شداد بن اوس څخه مرفوع روایت کړی چې د نارینوو له پاره ختنه کول سنت دي .

په صحیحینو کې دابوهریره بل روایت دی چې ابراهیم علیه السلام د ۸۰ کلونو په عمر کې ختنه وکړه ابن القیم لیکي : چې لومړی ابراهیم علیه السلام ختنه وکړه تر ده وروسته په انبیاو او د هغوی په منونکیو کې دا فعل د سنت په توګه جاري پاتي شو آن چې عیسی علیه السلام هم ختنه کړی وه اول په عیسائیت کې هم د ختنې فعل جاري و خو وروسته بیا عیسایانو د پیغمبر تعلیمات مسخه کړل او له هغه یې مخ واړاوه . د برنا س په انجیل کې د ختنې ذکر شته : یسوع ځواب ورکړ چې زه رښتیا خبره کوم چې له نا ختنه شوي کس څخه سپی هم ښه دی .

### د ختنې په اړه د امریکا د ماشومانو ډاکټرانو رائې

پروفیسر ( رائس ویل ) چې د واشنګټن د فوځي روغتون د ماشومانو د ناروغتیا د څانګې مشر دی د ( American family physician ) مجلې ۱۹۹۵ء د مارچ په ګڼه کې لیکي: په ۱۹۷۵ء کې زه هم د ختنې سخت دښمن وم او د ختنې د کمه ولوله پاره چې کومې هلې ځلې کیدې زه هم پکې برخه وال وم خو داتیایمي لسیزې د لومړنیو سروې ګانو څخه معلومه شوه چې د بې ختنې ماشومانو د بولو د نالیو د سوزش رنځ نسبت بیخي زیات پیدا کیږي . له دې سره بیا هم ما ختنه کول نه منل ما ویل چې کله د اړتیا په صورت کې وشي خو خیر . خو چې کله په دې موضوع کې زیاتې خبرنې وشوې او په ډیره باریکه توګه مطالعه وشوه نو پایله معکوسه وختله . او د خامخا ختنه کولو پلوی شوم . یواځې دانه بلکې د طب اطفال امریکائی اکاډمي ۱۹۸۹ء رپورټ چې خپور شو نو ددې اکاډمي د ۱۹۷۰ء له رپورټ سره بیخي مخالف و د ختنې د عمل له مخالفته څخه رجوع شوې وې او د ماشومانو په ختنه کولو ټینګار شوی و . لنډه دا چې د عقل بندګان د خپل معبود په کم عقلي پوهه شول او بیرته هغه فطرت او پنځ ته راستانه شول چې لوی. څښتن ګرد وګړي پرې پنځولي دي .

( فِطْرَةَ اللهِ الَّتِى فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا )

نومړي پروفیسر او د کلفورنیا د طبي ټولنې غړیو په یوه خوله دا رایه ښکاره کړه چې د ماشوم ختنه کول د صحت او. روغتیا ښه ذریعه ده او موږ یې له اوږده مخالفته څخه لاس په سر کیږو .

## ختنه او د جنسي غړيو پاکي

د ۱۹۹۵م نیوانګلینډ جرنل اف میډیسن
New England Journal of Medicine
په مجله کې ډاکټرشيون ليکي : بې شکه د ماشوم ختنه کول د ټول عمر لـه پـاره د جنسي غړيو د صفائی کار اسانه کوی په دې توګه په ماشوم والي کې د قلفي (د تناسلي غړي د سرپوست) لاندي رنځ اچونکي جراثيم نه جمعه کيږي . ډاکټر شيون د نړۍ په وتليو ډاکټرانو کې شمېرل کيږي د ماشومانو د رنځونو نامتو متخصص دی د خاص عضو د کينسر په نظر کې نيولو سره د جنسي غړيو په صفائی ټينګار کوي او ليکي : د پټو غړيو ښه صفائی خورا زياته مشکله خبر ده او دا مشکل د نړۍ په وروسته پاتي هيوادونو کې نـه بلکې د امريکا په څير لوی او ځيني نورو وړو پرمخ تللي هيوادونو کې هم د جنسي غړيو د صفائی خبره د ډاډ وړنـده د برتـانيي د ناختنه ماشـومانو د يـوه ښوونځی له سروي څخه معلوميږي چې په سلو کې د ۷۰ ماشومانو د جنسي غړيو د صفائی حالت بيخي خراب وو په ډنمارك کې لـه يـوې څيړنـي څخه معلوميږي چې د شپږ کلنو ناختنه شويو ماشومانو د ۶۳ په سلو کې قلفـي د ګندګي له کبله خرابي شوي وي .

## ختنه او د بولو د نالي سوزش

په ۱۹۸۹م کې د يوې سروي له مخي دا خبره سپينه شوي ده چې د ختنه شويو ماشومانو په نسبت په ناختنه شويو ماشومانو کې د بولو د نالي سوزش ۳۹ په سلو کې زيات احتمال لري . د څلور کروړه ماشومانو لـه څيړنـي وروسته پروفيسر وائس ويل وائي چې په ناختنه زيات پيدا کيږي .

د پوهانو د يوه ټيم له اندازي سره سم کـه په امريکا کې د ختني عمل جاري و نـه ساتل شي نو هلته به شل زره تنه د حويفي په رنځ او د بډوډي د سوزش حالت بـه ډير خراب شي . پـه بر ټانيـه کـې (لانسټ) نومي مجله د ۱۹۸۹م کـال پـه ګڼه کې ليکي : کـه لـه پيل څخه د ماشومانو د ختني عمل شروع شوی وای نو د بولو د نـالي د سـوزش رنـځ بـه ۹۵ پـه سـلو کې کم شوی و .

## ختنه او د قضيب سرطان Panic Cancer

د بر ټانيي (B . M . J) نومي مجلې په ۱۹۷۷م کال کې ددي رنځ په اړه يو مضمون خپور کړ هغه ليکي : د قضيب (خاص غړي) سرطان په يهودو کې ډير کم پيدا کيږي او په اسلامي هيوادونو کې چې په ماشومتوب کې د ختنې عمل تر سره کيږي هم ډير کم دی د قضيب سرطان د نړۍ د ډيرو هيوادونو لپاره لويه ربړه ګرځيدلي ده . په ځانګړي توګه په چين ، يوګنډا . او يوتوريکو کې چې هورې له ۱۲ نه تر ۲۲ پوري په سلو کې نارينه په دې رنځ اخته دي . ځيني پوهان ددي رنځ اصلي لامل جنسي بې لاري ښيي او وائي چې دا رنځ له دې لاري يوه او بل ته سرايت کوي دامريکا يوه مجله ليکي ناختنه هلك يا سړی د قضيب په سرطان اخته کيږي : او مخ نيوی يې په داسي توګه کيږي چې په ماشوم والي کې ختنه کړل شي .

## ختنه او جنسي رنځونه Genetic diseases

د نيو انګلينډ جرنل فارميډيسن مجله د ۱۹۹۵م په ګڼه ليکي : دويم نړيوال جنګ او د کوريـا او ويتنـام پـه جنګونو کـې د دامريکائی فوځونو د حشفي د سوزش او له جنسي رنځونو څخه په ژغورلو کې د ختني عمل مهم رول ادا کړ .

داسـټراليا لـه يـوې نـوي سـروې څخـه معلوميږي چې په ناختنه کسانو کې په عمومي توګه څلور ډوله جنسي رنځونه پيدا کيږي . چې نومونه يې په لاندي ډول دي .

۱ - په تناسلي غړي داني Gental Herpes
۲ - (Candidiasis) .
۳ - سوزك (Gonorrmea)
۴ - اتشك (Syphilis)

پـه ۱۹۸۹م کال کې د امريکا يـوې سائنسي مجلې دا هم ليکلي چې ختنه سړی د ايډز له رنځه څخه ژغوري . دا مضمون دامريکا او افريقا له دريو څيړنو څخه خبري کوي او پـه دي خبـره ډيـر ټينګار کوي چې اکثره ناختنه کسان د ايډز په رنځ اخته کيږي .

نوی سائنس چې څه نن ثابت کړي دي هغه څوارلس سوه کاله په خوا د اسلام مقدس دين په څرګندو ټکو کې روښانه کړي دي که ژوري څيړني وشي نو سائنس داسلام په چوپړ کې لګيا دی هغه څه چې اسلام په مجمله توګه بيان کړي دي سائنس يې نن تفصيلات ورکوي او حقيقت يې معلوموي خو لـه بده مرغه چې نن د اسلام پوهانو او سائنس پوهانو پـه منځ کې يـو څه فاصلـه پرتـه ده څوك چې د اسـلام پـه حقيقت او مزاج ښه پوهيږي هغه لـه سائنس سره تړاو نلري او ځان نـه پـري خبروي الاماشاالله تعالی او ځيني خو يې لاتر ننه هم د يونان د ارسطو په فلسفه باندي بوخت دي او د منطقو په صغري اوکبري کې په حد اوسط پسي

غلام جيلاني ( حق پرست )

# له علاج څخه وړاندي تشخيص په کار دی

کله چي له ۱۹۱۷ م کال څخه تر ۱۹۷۹ م کال پوري د پخواني استکباري او ويني څښونکي ځواك يعني شوروي اتحاد د کبر کاسه ترڅوکو وختـه ، خو د حرص او هوس تنده يې ماته نه بلکه لا پسي زياته شوه همغه وه چي د خپلي اوږد مهاله استکباري او استعماري عادت سره سم يې د ۱۹۷۸ م کال په اپريل د ۱۳۵۷ هـ ل کال د غوايي د مياشتي په ۷ نيته د يوې خونړۍ کودتا په ترڅ کي لمړی په افغانستان کي خپل روزل شوي غلامان د واك پرګدۍ کښينول خو کله يې چي وليدل چي ددوی لاسپوڅي او تالي څټونکي باندونه د افغانانو د اسلامي او افغاني خوځښت د ځپاند سمندر په څپو کي د ډېبدو او پوپناکيدو په حال کي دي ، نو هغه وه چي د ۱۹۷۹ م کال د دسامبر د مياشتي په ۲۷ چي د ۱۳۵۸ هـ ل کال د مرغومي د مياشتي له ۶ نېټي سره يې سمون درلود د خپل يونيم سل زره کسيز سره پوځ ته يې زموږ پر خاوره باندي د راختلو بولـۍ ورکړه ، افغانستان د روسانو له خوا اشغال شو . د ټولي نړۍ سياسي او نظامي کتونکي په دې باور وه چي نږدې وروسته د نړۍ په نقشه کي د افغانستان په نوم کوم ازاد هيواد وجود نه لري . بلکه دا هم دشوروي له مستعمرو څخه يوه مستعمره شوه ، امريکا به هم چي ډيره له قهره ډکه شوه او دشوروي پرمختـګ يې د هند سمندر او د فارس خليج په لوري خپلو ګټو ته نه جبيره کيدونکي زيان بالـه نو غابنونه به يې وچيچل او يواځي به يې دومره رمباړه وکړه چي امريکا به شوروي ته اجازه ورنکړي چي له افغانستان څخه بهر نوري سيمي اشغال کړي . ددې خبري مانا دا وه چي ګواکي افغانستان خو د شوروي امپراطوري خورجين ته ولويده په دې کي خو شك نشته ، خو ترديې وړاندي به شورويانو ته اجازه ورنکړو چي پرمخ لاړشي . په هر صورت دنيا د شوروي يرغل په مقابل کي لاس تر زني ناسته وه . چا له ډاره شونډي نه شوای پرانستلای ، خو دايمان غيرت او شجاعت په وسله سمبال افغانان وه چي د خپلو مجاهدو او مبارزو علماو په فتوای او بولۍ يې له سرې بلا سره پنجه نرمه کړه . د هغوی ټول مادي زور يې اوبه او د زور او تجاوز د طلسم بت يې ورته ټوټې کړ . يرغلګرو روسانو ته يې د خپل سر په ناولي کاسه کي اوبه ورکړې او هم يې تر نهو کلونو څخه زياتي مودې په بهير کي د خپل هيواد يوې يوې لوينبتي ځمکي د ازادولو او د کمونيزم د چټل بيرغ پرځای ،داسلام د روښانه او سپين توغ درپولو لپاره يوه سپيڅلي ککرۍ قربان کړه ، يوه مور بور شوه ، يوه خور بې وروره شوه يو زوی

یتیم شو او یوه ناوي کونده شوه . او بیا هغه وه چې د ۱۳۶۷ هـ ل د سلواغې د میاشتي په ۲۶ نیټه وروستي روسي عسکر په ځوړند سراو ټیټو سترګو له افغانستان څخه په تېښته پښې سپکې کړې چې دې کار د نړۍ ډیر پاخه او تجربه کار سیاسي او نظامي پوهان هېښ پېښ او ګوته په غاښ کړل . له افغانستان څخه د روسي عسکرو له تیښتي سره سم له نړۍ څخه د کمونیزم د الحادي او اشتراکي مفکوري کمبله ونغښتل شوه شوروي زور واکي اوستروواکي ټوټې ټوټې شوه، کمونیزم پخپله زانګو کې تر چړې تیر شو هو! روسان له افغانستان څخه وتښتیدل خو تر شاه یې خپل ګوډاګیان او زنجیري غلامان په کابل کې د بې واکه واك پرګدۍ پرېښودل . خو هغوی هم تر ډیري مودې ټینګ نه شول . ځکه له یوې خوا د مسلمانو مجاهدینو تر سخت فشار لاندې وه او له بلې خوا د ژبنیو سمتي ، ګوندي اوتوکمیزو اختلافاتو له کبله سره چاره غوښه او یو د بل سر ته ناست وه د شوروي د ګوډاګیانو (خلقیانو)، پرچمیانو ، ګلم جم ملېشو او . . . ) مخالفت د مجاهدینو په ګټه وه ځکه چې مشهوره خبره ده چې (جنګ سګان خیر درویشان) په هر صورت د مجاهدینو لوړ جنګي مورال او بریالي عملیات له یوې خوا او د کمونستانو خپل منځي اختلافات ددې سبب شول چې کمونست رژیم انشعاب وکړي او بیا سقوط وکړي او مجاهدین کابل ته ننوزي .

هو ! د ۱۳۷۱ هـ ل کال د ثور د میاشتي په پنځمه نیټه د کابل په وخت د شپې په ۸:۲۵ بجو له کابل راډیو څخه د کمونستانو د واکمني د سقوط او د مجاهدینو د واکمنی اعلان وشو . چې دغه شیبه د هر مسلمان افغان لپاره د ژوند تر ټولو خوږه شیبه او د اختر ورځ وه . هر مسلمان افغان داسي فکر کاوه چې له ۱۴ کاله ډغرو جهادونو ، هجرتونو او شهادتونو څخه وروسته زموږ د اتل ، مومن او مجاهد ولس د بقا بېړۍ د اور وینو اوښکو د سمندر له طغیاني څپو څخه د نجات ساحل ته را وختله - د غلامۍ په توره تروږمۍ پسې د خپلواکي روښانه او ځلانده سهار را وخوت ، د زور - ظلم او تزویر په بوربوکیو پسي د عدالت او صداقت ورانګي خورې شوې د بل واکي کرغېړنه دوره پای ته ورسیده او دخپلواکي بختوره ګړۍ را ورسیده . د یو میلیارد مسلمانانو په تیره بیا د شل میلیونه افغانانو د وینو اوښکو او اسویلو په برکت د کفر ، الحاد ، بې دیني او اشتراکیت لړۍ له منځه ولاړې او ځای یې داسلام عادلانه نظام ورانګو ونیو اوس به د افغان مسلمان ملت دربدریو ، مسافریو نهیلیو او . . . ته دپای ټکی کیښودل شي . مسلمان افغانان به نړۍ له ګوټ ، ګوټ څخه د خپل ګران هیواد خوږې او پستې غېږې ته راستانه شي ، د خپلو شهیدانو له قاتلانو څخه به انتقام واخلي ، له نړۍ خوړونکو روسانو څخه به د خپلو ورونو د وینو او جنګي تاوان واخلي . د خپل هیواد بیا ودانولو ته به له سره متې را ونغاړي .اوبالاخره به په خپل ګران هیواد کې د اسلام تر سپیڅلي بیرغ او قانون لاندې له سره ژوند پیل کړي او د یوه داسي اسلامي او قراني نظام بنسټ به کېږدي چې د ټولي نړۍ د مسلمانانو لپاره به سرمشق ،د الهام منبع او د تقلید مرجع وي . او په پای کې به همدغه نظام ددې سبب شي چې په ټوله نړۍ کې به د مسلمانانو بده او د مظلومیت ورځ پای ته ورسیږي او بیا به د کوم کافر پلار هم مسلمانانو ته په خیرنه سترګه ونه ګوري له دې اعلان څخه وروسته د ۱۳۷۱ هـ ل کال د غوائی په اتمه نیټه جهادي مشران له بشپړ پروتوکول او دبدبې سره له پیښور څخه د کابل په لور وخوځیدل که څه هم چې کمونستانو واك مجاهدینو ته وسپاره .

خو افسوس چې پوړتني هیلې ، ارمانونه او ارزوګاني یواځې خوب او خیال او د اوبو پرمخ کرښې ثابتې شوې هغه ځکه چې زموږ هغوتنظیمي مشرانو (ټولونه بلکه یوځو تنو) چې ځانونه یې داسلام او هیواد مدافعین او ساتندویان او د خپلواکي د لارې اتلان بلل د خپل حرص ، ځان غوښتني او لوبې په ناسور اخته ددې پرځای چې یو، بل ته د مینې ، وروری ، عاطفې ، انسانیت او افغانیت لاسونه ورکړي ځینو یې سرونه د کمونست د وستم په ګریوانه ور ننه ایستل او ځینو یې په شهنواز تنې وفادار وطن جار ، پکتین ، جبار ، رفیع او . . . چې له پخوا څخه یې د مینې او یاراني مزي ورسره غزولي وه تکیه وکړه ځانونه یې د هغوی په لمن کې وغورځول او څه چې د هغو زړه غوښتل د یوه ګوډاګي په څیر به یې نځول .

بیا نو هغه څه وشول چې په یادولو یې هر مسلمان اوهر افغان شرمیږي . د پښتو او دري پـښه نامه . دپښتون اوتاجك

شعیه اوسني ، هزاره او ازبك په نوم تش په نوم جهادي مشرانو ( واقعي جهادي مشرانو نه ) ،کمونستانو ستمیانو ، غلو او داړه مارانو او د سرو ، او (( تورو )) تورمخو غلامانو په سل ګونو زره بېګناه افغانان په خپلو وینو ولمبول ، د هیواد لویې لاري کندوکپر او پلونه له منځه یووړل شول په ټول هیواد کې د برېښنا اوتلیفون یوه پایه هم پرې نه ښودل شوه ، د روسانو مات ټانکونه الوتکې او ( چې په واقعیت کې زموږ ویاړلي ژوندي جهادي تاریخ وه ) د هیواد ملي او تاریخي شتمني د کباړ په بیه د بهرنیانو لاس ته ورغلل د کابل ښکلي اوتاریخي ښار په سلو کې اتیا برخې وران ویجاړ شو د قدرت .دغو بدمرغه لیونیانو چې کله یو - بل ته ښکرونه اړم کړي وه او بهرنیو مغرضو کړیو به په شا ټپول زموږ زیات شمیر علما مجاهدین او روحانیون دوی ته په وار ، وار ورغلل زارۍ یې ورته وکړې ، استدلال یې ورسره وکړ ، هره هڅه یې وکړه ترڅو دغه جاهلانه جنګونه پای ته ورسوي د هیواد والو ویر او ماتم پای ته ورسوي د مجاهدینو په لاس واقعي اسلامي حکومت قایم کړي په دغو هلو ځلو کې موږ داسي هستي او شخصیات له لاسه ورکړل چې ټول اسلامي امت ورباندي خوار شو. له بهر څخه د عربي افریقائي او اسیایي هیوادونو څخه له اسلام ، جهاد او اسلامي انقلاب سره مخلص علما راغلل رباني او ګلبدین ته یې ډیر دلایل وړاندي کړل قناعت یې ورکړ چې دا خپل منځي بې مفهومه جګړې پای ته ورسوئ او د ملت په حال رحم وکړئ حتی قران یې ورته

شفیع کړ چې د محمد (ص) قران په خاطر خپلـ

منځي جنګ بند کړئ ، جهاد مو وشرماوه اسلام مو وشرماوه او . . . خو دغو ښاغلو په ځواب کې ورته ویل چې موږ حاضر یو چې تر ۲۵ کلونو پوري وجنګیږو د همدغو لاملونو له کبله ددې پرځای چې له بهر څخه مهاجرین بېرته خپل هیواد ته را ستانه شي ، له هیواد څخه د هجرت نوې لړۍ له سره پیل شوه . ددې پرځای چې د پخوانیو ټپیانو او معیوبینو پرټپونو پټۍ کېښودل شي ښې پریمانه مالګې پرې ودوړول شوې . د هجرتونو اسارتونو، وژلو ، ټرلو ، شړلو او لوټولو لړۍ له سره پیل شوه . د اور ، وینو اواوښکو سېلاب لا پسي څپاند شو زموږ بهرني دښمنان او داخلي منافقین او کمونستان له وضعي څخه ډیر راضي وه د هر غله ، لوټمار او لار وهونکي بیډۍ میره وه چې څه یې زړه غوښتل هغه یې کول څوك نه وه چې مخه یې ونیسي . اوسني جهاد خو مو له هرڅه سره ویلورل شو تاریخي افتخارات مو هم لکه د احمدشاهبابا هغه توره چې د پاني پت په میدان کې یې هندوان پرې تار و مار کړي وه او دده ویاړمنه پګړۍ او د غازي وزیر محمد اکبر خان هغه تفنګچه چې مکناټن یې پرې ویشتلي وو او داسي نور ملي تاریخي ویاړونه یې بهرنیو بادارانو ته د ډالۍ په توګه وړاندي کړي لنډه دا چې له هره پلوه یو خوا شینونکي او زهره چاودي حالت روان وه چې ولس یې تر پوزې رسولی او لالهانده کړی وه په هیواد کې د غلا ، چور ، وژلو لوټولو او شړلو بازار ښه ګرم او د ملوك الطوایفي وضعه حاکمه وه بهرني دښمنان مو په دې حالت ډیرخوشاله او زموږ د ګران هیواد د تجزیې پر پلانونو باندي ګړندی کار روان وو ملت ته هرچا امتحان ورکړی وپاچا صاحب ، ولس مشر صاحب خلقیان ، پرچمیان ، ستمیان ، او تش په نامه مجاهدین ټول ملت ازمویلي وه او (( ازموده را ازمودن خطاست )) لنډه دا چې داسي څوك نه وه چې ملت دې ورته تمه وکړي او یا دي ورباندي اعتمادوکړي .او مطلوب حالت ته د موجودې وضعي د اړولو لپاره د یوه غیبي ځواك راتلو ته سترګې په لار وه .

څکه چې د ثور (( اتمي )) خو د ثور تر (( اومې )) دردونکې پایلې درلودي اویواځې دومره شوې وه چې د لور او څټك ځای ټوپك او پاټك نیولی وه او بس همغه وه چې د نهیلیو بې وسیو او مایوسیو په دغه تپه توره تروږمۍ کې د هیلو او عدالت یو سپرغۍ وبرېښېده چې ډیره زر پلنه ، پراخه ، روښانه او ځلانده شوه چې رڼا یې د سترګو په رپ کې ټول هیواد ته ورسېده همغه وه چې د خوریدلي ، ربړیدلي ، کړیدلي افغان مومن مجاهد ولس پرمخ باندي د لوی او مهربان خدای د رحمت او نصرت دروازه پرانستل شوه د هیواد اصیلو مومنو او مجاهدو زامنو د عالیقدر امیرالمومنین ملامحمد عمر مجاهد په مشري په تش لاس یواځې او یواځې د لوی او مهربان خدای د نصرت په اتکا او د کامل ایمان په زور د زور ،ظلم ، فساد ، غلا ، چور ، قتل او د اسلام تر نوم او لیبل لاندې د غیر اسلامي اعمالو د مخنیوي په خاطر ډګر ته را ووتل .

هو ! دهیواد دغو رښتینو زامنو د طالبانو داسلامي تحریک په چوکاټ کې د محترم ملا محمد عمر مجاهد تر مشري

لاندې د فساد او منکراتو پر خلاف سنګر ونیو د سترګو په رپ کې له کندهار څخه نیولې او د هیواد د جنوب ، جنوب لویدیځ ختیز ، مرکزي برخو په شمول یې د هیواد پرمرکز د کابل په ښاربانديې دامن ،سولې ،وروري، عدالت او صداقت په فضا کې د اسلام سپېڅلې توغ ورپاوه . هیواد ته یې سوله او امن را وستل . د مومن او مجاهد ملت اویونیم میلیون شهیدانو د ارمان سره سم یې په ګران هیواد کې د اسلام سپیڅلي نظام قایم او قراني قانون نافذ کړ . د هیواد د ملیتونو او ولسونو ترمنځ یې د اسلامي ورورولۍ اړیکې ټینګې او ټول یې د حبل الله په متین مزي باندې له یو بل سره وصل او پیوست کړل د هیواد ملي حاکمیت او ځمکنۍ بشپړتیا یې تامین کړه د هیواد اداري ، اقتصادي سیاسي ، نظامي او .. سیستمونه یې بیا فعال کړل . د هیواد لویې لارې یې ترمیم کړې چې د ډاډمنې سولې په برکت همدا اوس د شپې او ورځې د هیوادوالو د استفادې لپاره پرانستې دي .

هو ! رښتیا هم چې دافغانستان د اسلامي امارت مسولینو او منسوبینو د راشده خلافت خاطرې را ژوندۍ او د هیوادوالو ، سر ، مال ، پت ، عزت او . یې خوندي کړل د قدرت لیونیان اود چوکۍ مینان یې له هیواد څخه تري تم او ددوی دشر . فساد . غلا . او تکبر کمبله یې ور ونغښتله

په هر صورت د طالبانو د اسلامي تحریک او اسلامي امارت د ټولو دیني . ملي . حماسي او تاریخي خدمتونو او ویاړونو سپړلې یادونه زموږ د لیکنې له توان څخه وتلې ده . هغوی د خپلو پاکو وینو په بیه هیواد له تجزیې څخه وژغوره یوه سل په سلو کې اسلامي واکمني یې ټینګه او قراني قانون یې حاکم کړ د هیواد ټول ملیتونه یې د اسلام تر سپېڅلي توغ او نظام لاندې سره یو موټی کړل . د غلو پاټکیانو ، ټوپکیانو ، خائیانو . وطن پلورونکو او د هیواد . ولس او مذهب د مخالفینو د فعالیتونو توره او کرغیرنه دوسیه یې د تل لپاره وتړله او هغوی یې په تور مخ له هیواد څخه وشړل . لنډه دا چې طالبانو هغه څه وکړل څه چې د خدای امر وه ، څه چې د ایمان د عقیدې مقتضی وه او څه چې دولس غوښتنه او ارمان او د اسلامیت او افغانیت ایجاب وه . خو افسوس چې د یوشمیر غرب وهلو او شړل شوو خفاشانو سترګې ددغه اسلامي نظام په زرینو وړانګو وبربښېدې یواځې او یواځې د پردیو په لمسون او د رانده تعصب او حسد له مخې یې دلته او هلته په یوه او بل نوم غونډې اومنډې پیل کړې ترڅو په هره ممکنه وسله او وسیله چې وي په یونه یو ډول د اسلامي امارت اومسلمان ملت لپاره ستونزې پیدا کړي زموږ د هیواد د بیا ودانولو د بهیر په لاره کې خنډونه او خنډونه رامنځ ته کړي چې زموږ ددې لیکنې بنسټیز موخه تر ممکنې اندازې پورې ددغو څیرو بربنډول او ددوي دمنډو ، ترړو څېړل دي چې ...

په اوس مهال کې د افغانستان د ستونځې د حل تر نوم او چتر لاندې دوه داسې پروسې رواني دي چې که یې رمباړو او تبلیغاتو ته وګورو نو خدایږو چې ټول یې تروړي سپک او پل یې په مړو ایرو هم نه معلومیږي . دغه دوه پروسې یوه د روم او بله د قبرص پروسه ده . چې غربي نشراتي اداري یې په ډېر ستر نوم معرفي کوي . خو که حقیقت ته لږ ځیر شو نو هغه څوک څنګه په ملت کې ځای موندلای شي او په لوڅو سترګو د واکمنۍ خوبونه ویني . چا چې کمونستان پخپله غېږه او لمن کې ساتلي ، روزلي ، نازولي او ددوی خلاف هر یو اسلامي تحریک یې ځپلی . په خپل ټول ژوند او د خپلې واکمني په څلویښت کلنه موده کې یې د یوې فریضې او یوه سنت عملي کولو ته ملا نه ده تړلې هغه چې ټول ژوند یې په شرابو او کباب تیر کړی هغه چې د اسلامي نظام په سل ګونو او زرګونو پلویان یې تر ډول ، ډول شکنجو لاندې نیولي خو د اسلام دښمنان او وطن پلورنکو ته یې تندی هم نه وي تریو کړی هغه څوک په کومه خوله او کومو سترګو په افغانستان کې ځانته د یوه مصلح ، مشر او واکمن په حیث مقام موندلو خوب ویني چې ځان یې واجب الاحترام او غیر مسول ګڼلی په داسې حال کې چې نور مخلوق خو پرېږده حتی د خدای پیغمبرانو او نورو غوره بندګانو هیچا هم ځان واجب الاحترام او غیر مسول نه دی ګڼلی هغه څوک په کومه پزه بیا افغانستان ته راځي او تخته یې زړه تخیرې چې پر ولس یې څورلس کاله اور او ګولۍ اوربدې . پر ټول هیواد باندې اوربل وه ملت یې د وخت له ستر وحشي او مادي خواک سره د هیواد له فکري او جغرافیا یې حریم څخه د دفاع په سنګر کې لاس او ګریوان وه . اودی د غربي بادارانو په پسته غېږ کې په بېغمه او خواږه خوب ویده وه .

شپاړس لکه هیوادوال یې ددین اوهیواد د خپلواکي په لاره کې شهیدان شول خو ده نه د کوم شهید په شهادت ویر وکړ نه یې د غمشریکي یو جمله له خولي وایسته او نه یې د ینوه معیوب ، مهاجر او تپي هیوادوال پوښتنه وکړه نو هغه څوك چې خپل کردار او تاریخ هم ښه وزته معلوم او ځرګند وي او د ملت احساسات او د ځان په اړه د هغوی له نظر او ارادې څخه هم خبر وي اوتر ټولو زیاته یې لاډا چې په خپلو سترګو وویني چې هغه کسان چې دده په تخرګ یې سرونه ننه ایستلي په ملت کې یې ملا تړ او محبوبیت له صفر سره ضرب شوی دی .

نه یواځي دا چې په ملت کې ملاتړ او محبوبیت نه لري بلکه د زیاترو خودا حال دی چې مسلمانان یې وینو ته تږي دي خو . . . بله دا چې دغه د روم د پروسي مشر او دده ((حواریون)) دعوه کوي چې موږ په افغانستان کې د سولي د تامین ، جګړي د پای ته رسیدو او . . . لپاره د اضطراري لويې جرګې تد ویر غواړو چې په هیواد کې اوربند وکړي او حکومت جوړ کړي . نوګرانو هغه وخت چې دا ملت له خپلو ټولو مادي او معنوي شتو سره لمړی د نړۍ خور ورس تر پنجه لاندي وه او چې هغه ونه توانید خپلي خیتي ته یې کوز کړي نو بیا د پاټکیانو او حکومت یارانو د غضب په لمبو کې وریت شو تاسو چیري واست ؟ دد ی ملت او هیواد څه غم مو وخوړ ؟ هلته مو څه وکړل چې نن به مو د دردونو د واشئ .

ایا د لویې جرګې تقدس ، ضرورت اهمیت او شرایط هم درته معلوم دی که هسي په خوب کې غږیږئ ؟ ایا دا هم کوم منطق او قانون دی چې جرګه لاجوړه نه ده ټول مراحل یې ناتمام پراته دي خو مشر ټاکل شوی دی .

جرګه خو هلته لازمه وه چې زموږ په هیواد کې د بې دینه روسانو ، خلقیانو او پرچمیانو په لاس زموږ څورلس سوه کلن ديني او ملي افتخارات ، ملي واکمني ، ملي تشخص او خپلواکي د اور په لمبو کې د سوځیدو په حال کې وه .

جرګه خو هلته لازمه وه چې له ګران افغانستان څخه روسي داړه ماران وتښتېدل کمونستان له حتمي ماتي سره مخامخ وه ، خو د پیښور کاغذي رهبران او افسانوي اتلان هر یو په بېله ، بېله لار روان وه هر یوه یې ځان د کابل د ناګټلي تخت او سلطنت مستحق او وړ ګڼلو او بې له خپل ځان څخه یې بل هیڅوك نه لید چې په پای کې ددوی د خپل منځي غوبل د لاسه افغانستان د خپلو او پردو د خندا شو موږ خو د جرګې اهمیت او د رښتینې منو خو اوس مو چې د ملت د وجود بېړۍ د نابودۍ له څپوڅخه د نجات ساحل ته را ختلي ، نن چې د زرګونو علماو، مشرانو ، قوماندانانو ، پوهانو ، ملي او مسلکي شخصیتونو او . . . په مشوره اسلامي ، امارت تشکیل شوي ، امیرالمومنین ټاکل شوی ، د هیواد خپلواکي ، ځمکني بشپړتیا او ملي شتمني خوندي شوي په هیواد کې واحده اداره تشکیل شوي وروسته له څورلسو پیړیو څخه سل په سلو کې اسلامي نظام قایم او قراني قانون حاکم دی نونه لويې جرګې ته اړتیا لرو او نه غربي انتخاباتو ته ، ښه نو دا چې دا خلك خپل حیثیت هم پیژ نی او خپل سیوری هم په اوبو کې ویني نو بیا یې څه په تبۍ حیرانه ده چې سترګي یې پټي کړي او خولي یې پرانستلي د لویې جرګي او نوري ناري ، سوری وهی . نو زموږ په خیال چې یو خو دا خلك د خپلو بادارانو له خوا اړایستل کیږي دوی هم کلونه ، کلونه د هغوی نمك خوړلی اوس خو څنګه د هغوی نمك حرام کړي او امر یې پرځمکه وغورځوي او بل دا چې دا ب لکل رښتیا ده چې : ((پیشو چې ویده شي نو موږکان په خوب ویني)) او د قبرص د پروسي متصدیان خواران هم په همدغه راز در واخلئ هغوی هم لاس او پښي وهی چې په زور ، وینو ، غلا ، چور ، وژلو ، ترلو او . . . خو ونه شوه نه مو څه تر ګوتو کړل او نه مو په څه ارمان وخوت دا سیاست دی او په سیاست او یارانه کې خو هر څه روا دي .

خو دغو یارانو ته به دومره ووایو چې که هرڅو کوششونه وکړئ ، خپل مخونه په سلو پردو کې او ځانونه د سلو نومونو تر شاپټ کړي ، دوه هندواني په یوه لاس کې ونیسی اوښ له بار سره په بډه ووهی بیا به هم ونشئ کړای چې خلك وغولوئ ځان هغو ته دوست معرفي کړی ، له هغو څخه خپل جنایتونه او قساوتونه هیر کړئ بې غمه اوسئ یواځي خپل ځان غولوئ ، د کنجاري خوبونه وینئ ستاسو تاریخ له چا څخه هیر نه دی او ستاسو په نسبت چې د مسلمانانو په زړونو کې کومه کرکه ده هغه لاتر اوسه پخپل ځای ده ملت دومره ساده نه ده چې غل مرکچي کړي . که توره شپه ده هم مني په شمار دي .

د قبرص او روم د پروسي متصدیانو ! له تاسو سره په واقعیت کې نه په هیواد کې امن ، ثبات او اطمنان مطرح دی اونه

د ولس له غمه مړه یاست ستاسو خو نه د دوستی اړخ معلوم دی نه د دښمنی ، چې سهار له چا سره نوک او وری یاست ماښام ورسره غوښه ، چاړه یاست . لنډه دا چې با رمو ډیر کوږ اومنزل ته د رسیدو نه دی له بله پلوه چې گورو په پیښور کې هم د ډلو ، تیلو ، اتحادیو ، او شوراگانو مور هره ورځ یو زوی زیږوي نن په یوه ، نوم سبا په بل نوم یو څو تنه سره را غونډیږي ، یوه اعلامیه خپروي او مطبوعاتو ته یې رسوي . دغه یاران چې په ځینو مواردو کې یې شمیر له یو څو تنو او کله نا کله په مشکله یوه گروپ ( ۱۲ تنو ) ته رسیږي هماغه زړه ، تکراري او یکنواخته سندره ده چې پرله پسې یې زمزمه کوي هغه دا چې : په هیواد کې دي په جنگ اخته ډلې جنگ پای ته ورسوي . د مسلي د حل لپاره دي سوله ایزي لاري ، چاري ولټوي مشکل دی د خبرو اترو ، مذاکرو او مفاهمې له لاري حل کړي نو دغو ښاغلو ته باید ووایو چې کومه نسخه تاسو وړاندي کړئ .

رښتیا هم چې ډیره جالبه ده خو دا خو علاج دی ، او ښه علاج دی مگر تشخیص نه دی او ترڅو چې د افغانستان د موجوده ستونځي کورني او بهرني محرکات او عوامل تشخیص نه شي ، د هغوی د مخنیوي لاري ، چاري ونه لټول شي په دې لاره کې صادقانه عملي گامونه پورته نه شي نو په تشو کاغذي هغه هم گونگو ، اعلامیو ، مرکو او بیانیو دا ستونزي نه حل کیږي .

که چیري په رښتیا هم څوک د هیواد اوهیوادوالو په درد درمند او د هغوئ د هوسائي په فکر کې وي نو پخوا له هغه چې خبروته خوله پرانیزي او یا په شعوري یا غیر شعوري ډول د نورو د لاس آله وگرزي ، باید له ځان سره فکر وکړي چې د افغانستان روانه ستونځه له کومې ورځې ، د چا په دستور ، د چا له لاسه او له کومه ځایه را وزیږیده ؟

څوک دی چې د ملت پر وینو ، غوښو ، اوښکو ، اسویلو ، احساساتو عقایدو ملي نوامیسو اوافتخاراتو ملي سوداگری وکړه او کوي یې ؟

څوک دی چې تل یې په پردیو گریوانونو سرونه ننه ایستلي او په رگونو کې یې پردی وینه او په ذهن کې یې پردي فکرونه پایي څوک دی چې سهار جومات او ببگاه میکیدي ته روان دي ؟

او څوک دی چې خبره او عمل یې سره یو ، د هیواد ، دین ، ولس ، او انقلاب جوړ د ځان لپاره تر ټولو ستر ویاړ بولي .

څوک دی چې د حاکم په بڼه کې د ولس خادم دی .

څوک دی چې د گران هیواد خپلواکي او د هیواد والو سر ، مال ، پت ، عزت او درنښت یې خوندي کړل .

څوک دی چې د کونډې ، یتیم ، شهید ، معیوب ، او محبوس افغان ارمان ته یې د عمل جامه ور واغوستله ، او د سپیڅلي جهاد د افتخارات یې خوندي کړل څوک دی چې د دوستی او دښمني معیار یې یواځي او یواځي د اسلام د مقدس دین اساسات دي نه د خیالي او دنیوي جاه او جلال لپاره همکاري او بالاخره څوک دی چې حق وایي ، حق غواړي او پرحق قربانیږي دی ټولو پوښتنو ته له خواب موندلو وروسته باید له ځان سره پریکړه وکړي چې د چا ملاتړ وکړي او څوک وغندي ددغو پوښتنو له مطرح کولو پرته په ټینو سترگو یواځي ناري وهل چې جنگي ډلي دي جنگ بند کړي (( یعني د هر مال بیه دوه روپۍ ټاکل )) اود جنگ او جنگي ډلو تفکیك او تشخیص نه کول لویه ناپوهي ، بې عدالتي ، حماقت ، خیانت ، غباوت او بغاوت دی که چیري څوک په رښتیا د هیواد له سولي ، سوکالي او بیا رغوني سره علاقه لري نو باید چې لمړی زموږ پورتني ټکي په غور سره په پام کې ونیسي او د حق او حقیقت په رڼا کې د ریز غوره کړي .

البته هغه څوک چې په گران افغانستان باندي یې بې د بل شخص ، ډلي او توکم له برخه والي په یواځي تن او گوند د واکمني خوبونه لیدل د هیواد مادي او معنوي شتمني او گټي یې ترخپلو ځاني او گوندي گټو قربانولي ، د خپلي واکمنی د ټینگیدو لپاره یې د هر (( سره )) او (( تور )) د مرئیتوب کړی په غوږ کول ، خو چې بخت ور سره یاري ونکړه او د خدای او ولس له قهر او غضب سره مخامخ او په شرمونو وشرمېدل او نن د نړۍ له یوه او بل گوټ څخه د اسلامي امارت په خلاف رمباړي وهي نو هغوی ته موږ یواځي دومره وایو چې :

(( موتوابغیضکم ))



# بندیزونه د ستونزو د اوارې لار ده او که خبرې اترې

سرمحقق سیدامین مجاهد

لکه چې د نړیوالو خبري اژانسونو او د ډله ایز ارتباط د وسایلو له لارې مو خبر تر لاسه کړ ، هغه اضافي بندیزونه چې روس او امریکا په پام کې نیولي وو ، چې د افغانستان په بېوزلو او جګړه ځپلو هیوادوالو پر خلاف یې ولګوي ، پدې وروستیو وختو کې یې د ملګرو ملتو د سازمان د امنیت شورا د پریکړې له مخې په یو اړخیز او بیرحمانه توګه نافذ کړل. که څه هم چې ظاهرا روس او امریکا دا استدلال کوي چې دا بندیزونه یواځې او یواځې پر طالبانو لګول شوي ، او د هغوی د پښو نه د غورځولو په خاطر دي ، یاني هدف او موخه یې دا په ګوته شوي چې ګواکې لدې لارې پر طالبانو باندې زور واچول شي ترڅو په افغانستان کې د بشري حقوقو او ښځو حقوقو ته غاړه کیږدي ، د کوکنارو او بنګو کرکیله بنده کړي ، د مخدره موادو د قاچاق مخنیوی وکړي او تر ولکې لاندې سیمو کې د دهشت اچونکو او تروریستانو کمپونه او روزنځایونه وتړي. اودغه راز اسامه بن لادن د دوی په خپله اصطلاح نړیوال تروریست د محاکمې لپاره ، لاس تړلی امریکا ته ور وسپاري.

خو نړیوال ښه پوهیږي چې دا اوتې بوتې روس او امریکا پر خپلو جنایاتو باندې د پردې غوړولو په خاطر له خولې را اوباسي ، ځکه د هغوی دا ادعاوې ساده خبري ندي ، دا د طالبانو سره د هغوی دښمني نه ، بلکې د اسلام په هکله د هغوی قاطع نظریات دي ، چې نه غواړي اسلام حاکم شي او که دا بهانې او پلمې نه وای. نو هغوی ضرور دا شان ورته پلمې نوري جوړولې.

په اسلامي امارت کې د بشر د حقوقو په هکله باید وویل شي چې اسلامي امارت نه یواځې دا چې د چا په حقوقو یې تیری او تجاوز ندی کړی بلکې سوله او امنیت چې د بشر لومړنی حق دی ، طالبانو په پوره ډول تامین کړی ، اوس په افغانستان کې داسې د سولې او امن ډاډ منه فضا حاکمه ده چې تیر تاریخ یې ساری نلري . د ښځو د کار او تحصیل په هکله باید دونه وشي چې پټیرو دوولسیزو ناتار او شخړو او په تیره بیا تنظیمي خپل منځي کشالو ، دا هیواد په داسې کنډواله بدل کړی چې نه یواځې دا چې د ښځو د کار او تحصیل شرایط یې له منځه وړي ښوونځی او اداري یې د قوماندانانو په قرارګاوو او پوځي پوستو بدل کړي او د بې کوره شویو کډوالو پند غالي او کمپونه یې تري جوړ کړي وو ، بلکې د نارینه وو د کار او زده کړې دپاره هم هیڅ راز شرایط لاندې برابر شوي . د نارینه وو دپاره درسي خوني او چوکې ، لابراتوارونه ، درسي وسایل او د زده کړې او کار نور ضروري وسایل نشته ، نو د ښځو د کار او تحصیل دپاره به څه تمه ولرو ، پداسې حال کې چې د بشر د حقوقو ټیکه دارانو او نورو خیریه موسسو هم په دې برخه کې د اسلامي امارت سره حتی ډیره عادي برخه هم نده اخیستې . اسلامي امارت په اساس کې د ښځو د کار او زده کړې سره کوم مخالفت نلري ، خو د مساعدو شرایطو انتظار باسي . د کوکنارو او بنګو بوټو د کرکیلې د مخنیوي په اړوند خو تفصیلاتو ته اساسا څه اړتیا نشته ، ځکه د همدغو هیوادونو ژورنالستانو او استازي چې پر اسلامي امارت باندې یې د بندیزونو لګولو ته ملاتړلې ، هره ورځ د سر په سترګو ګوري چې اوس د مرکز نه په ډیره لیږي پرته سیمه کې هم زموږ مومنو او مسلمانو هیوادوالو د عالیقدر امیرالمومنین د فرمان سره سم په خپلو

کروندو کي يو بوټي بنګ او کوکنار ندي کرلي بلکي د پخوانيو رژيمونو نه را پاتي د هيروئينو کارخاني او فابريکي يې لا هم وسوځولي او دا لړۍ لا روانه ده .

پاتي شوه د دهشتګرو او تروريستانو خبره په دې هکله بايد عرض شي چي افغانستان نه يواځي د اوس څخه بلکي د پخوا څخه د دهشتګرو او تروريستانو ستر مخالف دی او نه يواځي اوس بلکي د پخوا نه يې د چا په کورنيو چارو کي لاسوهني ته لمن نده وهلي ، د چا پر خلاف يې مخالفين ندي روزلي او نه يې هڅوی ته د تروريستي اعمالو او کار فعاليت زمينه برابره کړيده او نه يې ورته د استوګني اجازه ، او څرنګه چي اسلامي امارت ځان د محمدي غرا شريعت پابند بولي له دې امله هم تروريستانو ته يې تر ولکي لاندې سيمو کي نه ځای ورکړی او نه يې ورکوي ، ځکه چي اسلام د تروريزم مخالف دی .

را به شو د اسامه بن لادن افسانې ته . په دې هکله بايد زياته شي چي نوموړی د اسلامي امارت تر واکمنۍ دمخه دلته پناه راوستي نوکه دا تروريست و ، امريکا هغه مهال ولي د نوموړي د محاکمې غوښتنه نکوله . پداسي حال کي چي د روس سره د جهاد په دوران کي امريکا پخپله خوله هغه يو پياوړی مجاهد او صادق مسلمان بللی . اوس نو څه پيښه شوه چي پخوانی صادق مسلمان او پياوړی مجاهد يو ناڅاپه تروريست او دهشت اچونکی شو ؟ اسامه افغانانو ته پنا راوستي او د اسلامي شريعت او افغاني دود دستور له مخي افغانان ځان تباه کوي ، خو پنا اخستونکی دښمن ته نه سپاري . هغه هم پداسي شرايطو کي چي اسامه د جرم د ثبوت دپاره هيڅ راز اسناد او شواهد نشته اوکه وای نو د افغانستان د اسلامي امارت ستري محکمي خو په کراتو کراتو د نوموړي په هکله باندي د اسنادو او شواهدو د وړاندي کولو غوښتنه کړيده ، مګر هيڅا هيڅ راز اسناد حاضر نکړای شول .

د ملګرو ملتو د سازمان د امنيت شورا داستدلال له مخي دا بنديزونه د روس او امريکا له خوا يواځي او يواځي پرطالبانو لګول شوي او پر عادي افغانانو اغيزه نکوي . دا ډير عجيب او حيرانونکی استدلال دی ، ايادا ممکنه ده چي يوه غرقه شوي کشتۍ کي دي يو شميرخلک غرق او يو شمير نور دي روغ رمټ پاتي شي ؟ همدا اوس چي په افغانستان کي د بهرنيو اسعارو په وړاندي د افغانيو ارزښت نهايي حد ته را پريوتی ، ددې زور به د ملت نه وځي اوکه له طالبانو نه ؟ همدا اوس چي د ضرورت وړ اوليه موادو بيني او نرخونه په حيرانونکي توګه لوړ شويدي ، دا توکي بايد افغانان پخپله لاس ته راوړي اوکه روس اوامريکا يې ورته په واك كي ورکوي ؟

او بالاخره همدا نن چي د وړو ، تيلو ، غوړيو ، سکرو ، دوا - درملو ، مراسلاتو او نورو ټولنيزو خدمتونو بيې د اسمان سرته ختلي - ددې جبيره به څوك کوي ؟

د بله طرفه څه چي د يادولو وړ دي . هغه دا دي چي ايا دا بنديزونه به وکولی شي ، د روس اوامريکا موخه تر سره کړي ؟ او يا به کم تر کمه د روان کړکيچ د غوټي د خلاصون په هکله د سيالوډلو سره څه مرسته او کومك وکړای شي ؟

زما ګومان دا دی چي ددې بنديزونو له امله به د مقابل لوري هدف تر لاسه نشي ، او امريکا به خپل دې مقصد ته ونه رسيږي چي په ټوله نړۍ باداري وچلوي لکه د امريکا د متحده ايالاتو تيررئيس جمهور کلنټن چي د خپل جمهوري رياست د دورې د پايته رسيدونکي وينا په ترڅ کي چي د امريکا خلکو ته يې د ۱۴۲۱ کال د لسمي مياشتي په ۲ نيته د راډيو تلويزيون له لارې واوروله ، د امريکا د بهرني سياست په اړه وويل :

( امريکا بايد په ټوله نړۍ باندي خپله رهبري وساتي او نشي کولای چي د مشرتابه نه لاس واخلي . ) باختر اژانس د امريکا غږ راډيو په حواله ، خو ددې بنديزونونه به يوه نتيجه ضرور را ولاړيږي او هغه دا چي د جګړه ځپلي او پر هيواد مين مسلمانان به اورمرو د بشر د حقوقو د ټيکه دارانو ددې بنديزونو اصلي قربانيان وي . د امنيت شورا له خوا لګول شوي بنديزونه د وچکالي د افت سره يوځای په افغان مومن ملت باندي يو بل ګوزار دی ، چي د افغانانو مصيبت به لا نور هم پسي زيات کړي او د همدغه بنديزونو له وجې - د افغان مظلوم ولس د هيلو ټول امکانات د ناهيلي د جدي ګواښ سره مخامخ شويدي . خو موږ بيا ناهيلي نه يو ، او باور لرو چي د الله تعالی په فضل او مرحمت به غيبي لاس زموږ مرستي ته را ودانګي .

موږ پدې باور يو چي د امنيت شورا بايد پر افغانانو باندي د بنديزونو لګولو پرځای - ددغه کړکيچ او ستونزو د اوارۍ لپاره - يوه مناسبه فورموله لټولي وای او ښکيلي غاړي يې د خبرو اترو ميز ته کينولي وای خبرې په خبرو حل کيږي ، خو هر کله چي منطق اواستدلال ضعيف شي ، هغه وخت نو بيا د خبرو اترو پر ځای د توطيو او دسيسو لاره غوره کيږي لکه روس او امريکا چي د همدې وسيلې نه کار واخيستي .

مترادف کار دی . دی تخنیکي تهذیب . په دې لاره کې له نورو مختلفو هڅو سره خپل پر مختللي تخنیك انټرنیټ هم په کار اچولی دی . انټرنیټ د نوی ټکنالوژی خورا پرمخ تللی ایجاد بلل کیږي او د بشریت له پاره خورا ګټور ګام دی . انسان کولای شي له انټرنیټ څخه پوهنیزي ، روزنیزي ، تمدني ، اقتصادي ، سیاسي ، دیني ګټي په خورا اسانه او وړیا توګه ترلاسه کړي . خو د انسانیت بدمرغی او سپیره شامت به یې څکه وبولو چې د انټرنیټ د سرمزي هم د امریکا په لاس کې دي . د یوڅه مخکیني احصائی له مخي له انټرنیټ سره د ټرلیو خلکو شمیر اتیا میلیونه ته رسیږي . چې یواځي پنځوس میلیونه یې په امریکا کې دي . انټرنیټ د ازادي نړی سوغات دی هرڅوك چې هرڅه وغواړي هغه پکي داخلولای شي . او استعمالونکي یې چې هرڅه وغواړي هغه په انټرنیټ باندي کتلای شي . په انټرنیټ کې فاحش او بربنډ فلمونه ځایول او ښکارول یوه عادي خبره ده . داسي ډیري کمپنی شته چې دا نټرنیټ د عام کولو او خپلو فحاشیو د خپرولو په موخه خلکو ته په معمولي پیسو د انټرنیټ کنکشن ورکوي .
په نړیواله سطحه زیاتي جاسوسي اود څارګری اداري هم له انټرنیټ څخه ګټه اخلي په حاضر وخت کې سی . ای . ای C ، موساد ، د برتانیی انټلي جنس په انټرنیټ کې موجود دي او په خپلو منځو کې د څارګری مهمي دندي په ډیره پټه توګه تر سره کوي .
څکه دا یې ډیره وړیا او خوندي لاره ده ، په انټرنیټ کې د عیسائیت خپرولو مختلف پلانونه هم روان دي . او د نړی د عیسائی کولو هڅي کوي . په دې لاره کې خورا زیات مواد په ډیرو مخونو کې انټرنیټ ته داخل شوي دی . په انټرنیټ کې د اسلام په خلاف خورا زیات زهرجن تبلیغات کیږي د بیلګي په توګه له انټرنیټ سره پیوست یو تن وایی : مایوځل په انټرنیټ کې یو سړی ولید چې اسماعیل نومیده هغه ویل زه مخکي مسلمان وم اوس مي اسلام پري ایښی دی او د خپلي صفحی نوم یې ( المسجد الغریب ) ایښی و او په هغه کې یې د اسلام سپکاوی او د هغه په خلاف تبلیغ کاوه . ماپوښتنه څنی وکړه چې اسلام دی ولي پریښود ؟ ده ځواب راکړ : څکه چې اسلام جنسي ازادی ته اجازه نه ورکوي . په انټرنیټ کې په لسګونو داسي پروګرامونه شته چې د اسلام په ضد تبلیغات کوي چې د ځیني پروګرامونو عنوانونه په لاندي ډول دي :
د اسلام له پټي ځیري څخه پرده پورته کول ، د اسلام په اره حقائق او جعلکاري ، د قران په نظر کې د ژوند حقائق ، ویروونکي ښوونې ، ایاته له کوم مسلمان سره نکاح خوښوي ؟ او داسي نور. امریکا ان لائن - America on line یوه لویه کمپنی ده چې په انټرنیټ کې خورا زیات پروګرامونه لري دی کمپنی یو وخت یو پروګرام خپور کړ چې پیل یې دد دې ایت شریف په انګلیسي ژباړه سره وشو
(وان کنتم فی ریب ممانزلنا علی عبدنا فاتو بسوره من مثله). ژباړه : که تاسو د قرانکریم په اره دا شك لرئ چې د خدای ( ج ) له لوري به نه وي نازل شوي نو د قرانکریم په څیر یو سورت تاسو راوړئ ، دی کمپنی د قرانکریم دې ایت شریف ته په ځواب کې د قرانکریم په وزن سره په نصراني الفاظو باندي څلور سورتونه راوړل چې له ځانه یې جوړ کړی وو او نومونه یې داسي وو .
الایمان ، التجسد ، الوصایا ، المسلمین
نو ایا د کفري نړی په دې یرغلونو موږ ځان خبر کړئ ؟
ایا په دې خبر یو چې په دې توګه څومره مسلمان ځوانان د بیلاري په لور روان دي ؟ ددې منظمو دقیقو حملو له پاره څه ځواب لرو ؟
اقلاً له دې بیلاریو څخه د ځان او خپلو مسلمانانو ژغورلو له پاره موڅه کړي ؟
دا او دې ته ورته ډیري پوښتني شته چې ځواب غواړي . موږ مسؤل یو او ددې پوښتني به راځخه کیږي . خدای دخپل دین په خپله ساتونکی دی اود کفري نړی دسیسي او فریبونه به له منځه وړي (ومکروا ومکر الله والله خیرالماکرین). خو موږ مسؤل یو او پوښتنه به راځخه کیږي .

د محمدالله نورستاني ژباړه



# چیچنیا د تاریخ په هنداره کې

دچیچن قام او د چیچنیا تاریخ د اسلامي تاریخ یو ښه باب دی ، د تاریخي څېړنو سره سم چیچن د یوې قبیلې نوم دی چې د چاپه نامه روسي کمونستانو د ۱۹۱۷ میلادي کال کمونستي انقلاب څخه وروسته ۱۹۳۴م کښې په داخلي توګه باندې یو خپلواک جمهوریت چیچنیا ((انګوشتیا)) تشکیل او پدې توګه چیچنیا وجود ته راغله په تاریخي توګه سره له چیچن سره مربوطي ټولي مهمي سیمي د حضرت عمر"رض" په خلافت ۱۸-۲۴هـ کښې د مسلمانانو تر واک لاندې راغلي په قفقازکښې ((د جهادي تحریک)) د منظم کولو اساسي شخصیت د چیچنیا یواځنی لارښود او د نقشبندي سلسلي یو مرشید ((شیخ منصور( رحمه الله) دی څوک چې د شمالي قفقاز د خلکو لخوا په ۱۷۵۸م کښې د نوموړي تحریک (( لومړنی امام)) مقرر کړی شو که څه هم وروسته د غه جهادي تحریک د مریدانو په نامه مشهور او د داغستان عالمانو ته وسپارل شو د قفقاز د جهادي تحریک دغه سلسله د نقشبندي طریقې تر مشرې لاندي رامنځ ته شوه او مهمه کارنامه یې داده چې دوی په منځنی اسیا او قفقاز کښې په پټه او ښکاره توګه سره اسلام د مسلمانانو په زړونو کې محبوب او ژوندی وساته او د اقتدار له غوښتني پرته یې د مسلمانانو نظامي او سیاسي لارښووني وکړې دي نوموړي نقشبندي سلسلي په رأس کې دهند یو مهم شخصیت مجدد الف ثاني وه چاچې پخپل فکري او قلمي جهاد سره جنوبي اسیا له اکبري الحاد او بې دینی څخه خوندي وساتله کوم چې د اسلام د فکري او سیاسي تاریخ یو مهم دور ګڼل کیږي په قفقاز کښې د جهاد یا د مریدانو تحریک لومړنی امام شیخ منصور په پیل کښې ډیربریالیتوبونه لاسته راوړل دوی د شمالي قفقاز منځنی سیمي (چې چیچن هم پکې راځي) له ولادي قوقاز ښار څخه تر موزوك سیمي پوري روسي کلاګانې په خپلو حملو سره تباه کړې .

کله چې په ۱۷۸۷م کښې د روسي دویمي ملکې کیترین د ترکیې پرخلاف د جنګ اعلان وکړ نو مسلمانانو د شمالي قفقاز لویدیځي سیمي (سرکیشیا) خپل مرکز وګرځاوه او د روسیې پرخلاف یې په جنګ کښې برخه واخیسته کله چې د توري بحیري (بحراسود) په سیمه کښې ترکانو په ۱۷۸۸ میلادي کښې شکست وخوړ نو روسانو نوموړي شیخ ونیو او سینټ پیترزبرګ ته یې ولیږداوه او هلته دغه شیخ وفات شو د شیخ منصور له نیول کیدو او وفات څخه وروسته د جهاد تحریک ختم نه بلکې نوموړي تحریک لا خواکمن شو او له هغه وروسته غازي محمد د جهاد امام وټاکل شو او د نوموړي له شهادت څخه وروسته دده پر ځای حمزه بیګ امام او له ده څخه وروسته د جهاد زعامت امام شامل ته وسپارل شو دامام شامل په باره کې همدومره بس ده چې اوس یې هم نوم په شمالي قفقاز کښې ژوندی دی او په چیچن کې د روسیې پر خلاف دا اوسني د خپلواکي جهاد هم د نوموړي امام علیه الرحمة د هڅو برکت

دی د روسیې پرخلاف د امام شامل جهاد تقریبا ۳۵ کاله دوام درلود که څه هم امام شامل د داغستان د یوه کلي (کمره) اوسیدونکی و خو د نومړي تر زعامت لاندې ټول شمالي ققفاز د روسیې پرخلاف پاځون کړی و. په (بې سیوو) جګړو کښې هغوی روسانو ته شکست ورکړ له ټولو غرونو بلکې له جنوبي سیمو څخه یې روسان بالکل وایستل، ۱۰ کالو پرله پسې جګړو څخه وروسته تر ټولو لویه فتحه په کال ۱۸۴۴ میلادي کښې تر لاسه شوه په زرګونو روسیي پوځیان بندیان شول، ۵ توپونه او ډیري نوري اسلحې د مجاهدینو په لاس کښیوتې عجیبه خبره داده چې روسانو هم په داغستان کې د مسلمانانو پرخلاف د مقدس جنګ اعلان وکړ روسي شاعرانو جنګي ترانې او نظمونه ولیکل، روسانو خپل سل چنده طاقت په پوره زور سره په شمالي ققفاز کې ولګاوه، او سختې حملې یې وکړې چې مقابلتا امام شامل او نورو مجاهدینو عقب نشیني وکړه خو بیا هم تر ۱۰ کالو پورې په غربي غرونو کې جنګیدل بالاخره د اسلحې له کموالي او د زرګونو مجاهدینو د شهادت له امله امام شامل په ۱۸۵۹ میلادي کې روسانو ونیو، روسانو هم ددغه لوی او شریف مجاهد احترام وکړاو په درناوي سره یې په روسیه کې نظر بند وساته او بیاپه ۱۸۷۰ میلادي کښې نومړي امام وفات شو د دویمې نړیوالې جګړې په وخت کښې چې کله جرمني په ((کریمیا)) باندې قبضه وکړه نو د چیچن مسلمانانو له روسیې څخه د ازادۍ په هیله، له جرمنیانو سره مرسته وکړه، له نومړي

نړیوالې جګړې څخه وروسته له چنګیز او هلاکوخان څخه هم زیات ظالم ستالین د چیچنیا ټول مسلمان اوسیدونکي چې څولکو ته یې شمیر رسیدو د سایبیریا او د قزاقستان د واورو او صحرایي سیمو ته جلا وطن کړل چې هلته یې ۱۹۴۴م تر ۱۹۵۷م پورې و اوسیدل، له ستالین څخه وروسته خروسچوف پخپل وخت کښې نومړې پریکړه غلطه وګرځوله اود چیچن مسلمانانو ته وطن ته د راتلو اجازه ورکړل شوه، د اسلام معجزه بولي اوکه د چیچن د مسلمانانو نیکمرغي، د هغوی لپاره دغه جلا وطني داسلامي عقیدې د لاپیاوړتیا سبب شوه په پاریس کې میشته یوروسي پروفیسر ((الګزینډربنګسي)) پخپل کتاب ((د روسیي مسلمانان)) کښې لیکلي: ستالین پدوی ډیر سخت ظلمونه وکړل ټول جوماتونه یې له خاورو سره خاوري کړل دد غه ځای مسلمانان یې سایبریا او نورو ځایونو ته جلا وطن کړل لیکن پدې جلا وطني کې د هغوی (اسلام) د تصوف په سلسلې سره نور هم مضبوط شو چې په نتیجه کې په ۱۹۷۸ میلادي کښې د یو اټکل له مخې د چیچن نیمایي مسلمانانو له نقشبندي طریقي سره تړاو درلود چې همدغه سلسله په قزاقستان او کرغیزستان کښې د قادري سلسلې د خپریدلو سبب شوه او پخپله د چیچنیا کښې نقشبندي او قادري سلسلې په ۱۷ مه او ۱۸ مه پیړیو کښې ترکي مسلمانانو لخوا خپرې شوې. دغو جلا وطنو چیچن

مسلمانانو چې کله د جلا وطنې په څمکه قدم کیښود هلته هم هغوی ((د تصوف طریقه)) قایمه وساتله او قادري طریقې په قزاقستان کښې ډیر په زړه پورې کار وکړ چې هلته ((نورطریقو)) په نامه په ۱۹۵۵م کښې یو روحاني تنظیم جوړ شو چې مشري یې شیخ ((اویسي حجي زاغیف کوله چې د هغه په اثر په قزاقستان کښې تصوف خپور او بالاخره لدغه خانقایي تصوف نه عوامي تنظیم جوړ شو تر دې چې په چیچنیا انګوشتیا کښې د یادشوي لیکوال له قوله د (۱) لك او ۸۰ زرو ترمنځ نفرو ته یې شمیر رسیده د نومړي لیکوال په وینا: د ۱۹۱۷م کمونستي انقلاب څخه ترمخه په چیچنیا کې ۶۰ زره مریدان او ۳۸ زره مرشیدین یا لاربنوونکي وو. د یادونې وړ دی چې ددوی ((قومیت [illegible])) دیني قومیت دی او د وطن پرستۍ هلته کوم تصور هم نه پیدا کیږي د چیچن مسلمانانو وطن ته له واپسۍ څخه وروسته حکومت هغوی ته په ګروزني کښې د یو جومات د جوړولو اجازه ورکړه په ۱۹۸۰ میلادي کښې په کلیو کښې د جوماتونو د جوړولو اجازت وشو، څومره چې روسانو هلته د اسلام د ځپلو کوشش وکړ هغومره اسلام هلته قوت ومونده چې د ۱۹۹۴ میلادي جهاد او پاځون او رواني جهادي هلې ځلې یې ښکاره بیلګې دي

## رعايت ادب و حقوق د . . .

پیامبر بزرگ اسلام ضمن تاکید بر رعایت حقوق بینوایان می فرمایند ناتوان را پیش من اورید ، زیرا شما به برکت ناتوان روزی می خورید و یاري میشوید . از سخنان ان حضرت است که بد ترین طعام ها طعام عروسی است که به وی سیران را دعوت نموده و گرسنه گان و فقیران را راه ندهند . دین مقدس اسلام که همواره از نیازمندان وتهیدستان حمایت و پشتیباني می نماید رعایت حقوق همه ابنای بشر در ان ملحوظ نظر قرار گرفته تمام ازادی های معقول ، عدالت اجتماعی ، اخوت و برادری و برابری در ان باتمام و کمال مسجل گردیده است .

## د ختنه کولو . . .

لاګرځي .
خو په هغو زرو نتايجو باندي د نويو مدعاو له پاره ځواب نشي ويلای او هغه څوك چې په سائنس پوهيږي له اسلام سره تړاو نلري او آن چې ځيني خو يې حساسيت اودښمني ورسره لري .
بناءً مسلمان پوهان او ددين دعوت چلونکي بايد دی ټکي ته متوجه وي چې نوی زمانه نوی پوښتني لري ددي نويو پوښتنو ځوابونه اسلامي شريعت لري خو چې څو د پوښتونکي په ژبه اومنطق نه يو پوهيدلي په پوښتنه يې نه پوهيږو او ځواب ځوروستي خبر ده .
زموږ د اسلامي فقه يو شرط دا هم دی چې مفتي اوديني عالم به د زماني په عرف او چلن باندي خبر وي .
ماخذونه :


١- سنت نبوي او نوی ساينس دويم ټوك مخونه ٣٥٧ - ٣٦١
٢ - عقود رسم المفتي


## په اروپا کې د مسلمانانو . . .

اثر ( تاريخ تمدن اسلامي ) کې ليکي مسلمانان چې د سيسل پر جزيره لاس بري شول له هغه وخت نه علم او پوهی د ترقي لورته وده وکړه .
کرنه او تجارت پرمخ لاړل چې د باندنيو هيوادونه يې د زيتون ، پنبه ، شکر بوتي او درختي راوړلي اوآسيل کې يې وکرلي وبالي اونهرونه يې جوړ کړل چې تر اوسه لاپاتي دي د هيواد ذخاير او کانونه لکه د مسو کان د اوسپني کان . سنګ مرمر په ډيره ښه طريقه کشف او را و ايستل شول وريښمو نه جامي او توشکي جوړيدي . پاتي لري .

## بدي او ضرر

خومره چې لوړ او عالی مبادي په يوه بد سړي کښي فاسد شوي دي . په ځناورو کې هغومره ندي فاسد په هغه شي کښي لره ده چې د ابتکار مبدا په کښي نشته ذکا چې د ابتکار مبدا ده بدي زياتوي او ضرر يې ډير وي د يوه ظالم انسان ضرر زر ځله د يوه مضر حيوان له ضرر نه زيات دی لکه چې د يوه جماد ضرر له حيوانه نه لږ دی او ظالم د ظلم نه ډير بد دی .
(( ارسطو ))

## د باران دعا

لوی او نامتو صوفي بايزيد بسطامي ته د خپل ښار خلك ورغلل چې دعا وکړه څو خدای د رحمت باران وکړي .
ده ورته وويل ښه ده تاسو ولاړ شئ زه به دعا وکړم .
خلك ولاړ او ابويزيد له کوره ووت يوې دښتي ته ولاړ او ستر ځښتن ته په سجده پريووت دعا يې پيل کړه . او د خپلي دعا په يوه برخه کې يې داسي هم وويل :
ای پالونکي څښتنه ! زما په فکر په دې ټول ښار کې ماله خپله ځانه بل زيات مجرم او ګناه ګار ونه ليد نو دا دی هغه لوی مجرم له دې ښار څخه وتلی دی چې زما په فکر ده د ګناهونو له کبله دی په دې ښار بارانونه نه اورول نو پالونکي خدايه ته په دې ښار باران وکړي .
او همداسي وشول ښه باران وشو او ددي لوی صوفي دعا خدای قبوله کړه . ديته رښتونې عبوديت او بندګي وايی .

# د کندهار د حکومتي چارو جاج

پـه تیر پېـښې

د کندهـار ولایت د ارشاد او اوقـافو ریاست د روان لیـږدیز سپوږمیز کال (۱۴۲۱) په جریـان کې یو لړ مهمي دندي ترسره کړي . ۱ - د جماعتونو په برخه کې ، د کندهار ښار او ولسوالیو کې په (۳۸) جماعتونو کې د (الرشید وقف خدمـات) په مرسته ژور څاهان کیندلي . چې ورسره په سیمه کې د اوبـو د کمښت ستونزه حل شوي .

همدا رنګه په ښار او ولسوالیو کې د اذان او لمانځه وخت د کال په بیلا بیلو موسمونو کې په اوني کې یو ځل د شریعت ږغ راډیو لخوا خلکو تـه اعـلان شـوي ده . د جمعـی د لـمانځه د اداکولـو لپاره د خطیبانو ټاکنه او په خطبه کې د بحث موضوع د اوقافو له لوري ټاکل شوي ده . او تقریبا (۱۶) امامان د کال په اوږدو کې په بیلا بیلو مساجدو کې د ریاست له لوري نو مول شوي دي .

۲ - اوقاف : د ښار داوسیدونکو ترمنځ کشمکش د هستوګني په ځاینو ، سرایونو او یا د هغو په غیر قانوني ډول جوړونه . په اصولي توګه فیصله شوي دي .

۳ - حج او عمره : په سږ کـال کې (۱۰۴۹) کسـو حجاجو تکټونه داخل شویدي چې په دې کار کې د ریاست د منسوبینو له خوا نـه سترې کیدونکي هڅي شوي او د حجاجو لپاره د اسنادو جوړولو ، پاسپورټ د طیاري د الوتني ټکټونه د واکسین اجرا ، حاجي کمپ جوړیدل او تر هوائی ډګره د ترانسپورټ چاري د ریاست له خوا ترسره شوي دي .



همدا راز دامر باالمعروف او نهی عن المنکر د ریاست له لوري د منکراتو له منځه وړلو لپاره د کندهار ښار او اطرافو کې څرګندي هڅي شوي چې په هغه کې د کوکنارو کښت له منځه وړل او د هغه کروندګروته د هغو زیانونه بیان شوي دي .

دا رنګه پـه نشه ای مـوادو اختـه کسـان نیـول شـوي او لاژمـه لارښوونه ورته شوي ، او همدارنګه پـه زرهـاو د سـرود فیتـي ، فلمونه ، غیر شرعی عکسونه چې له خلکو نیول شوي او د خلکو په مخ کې سوځول شویدي . او هغه ښځي چې شرعی حجاب يې نه درلود او یايي لـه نـامحرمو کسـانو سره صحبت کـاوه لاژمـه لارښوونه شویده .

همدارنګه د کندهـار پـه ولسوالیو کې د امربالمعروف موظفیـن ګمارل شویدي چې تکړه علما کرامو له لوري ورته لارښوونه کیږي . او په ټولو ولسوالیو کې ددعوت او ارشاد د موظفینو لـه خوا د مساجدو نـوم د ملا امام نوم او دري تنه پرهیزګاره مقتدیان د اعضاوو په توګه ټاکل شویدي .

د کندهار ولایت د تنظیمه ریاسـت پـه چوکاټ کې لکـه (غزنـی ، کندهار ، ارزګان ، هلمند ، زابل) ولایتونه خپلي رسمي چاري د اداري ریاست په چوکاټ کې پرمخ بیایی . د هر ولایت د ښووني او روزني ریاست تخصیص ، د کارکوونکو او مدارسو معاشات او اعاشـه هم لـه دې ریاست څخه اجرا کیـږي . د هـري اداري ورځني چاري د څارنوالي ، مسـتوفیت او د ولایت د مقام د ګډ پلاوي لـه لوري څارل کیـږي . چې د کندهـار ټولو عرادجاتو تـه لمبر پلیټ ویشل شوي .

د کورنیو چارو وزارت تـه خپـل (۶) میاشتني راپور لیـږل شـوي او نوري اداري هم مکلف شوي دی چې خپـل راپورونه وزارت تـه واستوي . د امارت د لوړ مقام او د ریاست الوزار او وزارتونـو ټولي چاري لکـه : تشکیل ، تخصیـص ، فرمـان او امرونـه د ادارو پـه بشپړه توګه رسولي .

د کـار او ټولنیزو چارو ریاست پـه خپـل نوبت نـه سترکیدونکي هڅي کړي چې په روان کال کې چې (۱۲۳) مامورین او (۲۴۰) تنه اجیران پـه مختلفو ادارو کـې ګمـارلي . او د ولایت مقام دلارښوونـي لـه مخـي چـې دي ریاست تـه شـوي وه د بیلا بیلـو ریاستونو او امارتي ادارو څارنه او د ورځنیو چارو پلټنه شـوي ده چې تر اوسه پوري د (۱۳) بیلا بیلو ریاستو کتنه شوي ده .

همدارنګه د کار او ټولنیزو چارو د ریاست په شپږ ګونو ناحیو کې یو لړ ښوونیز او روزنیز مرکزونه جوړ کړي ، چې پدې کار کې د هبیتات خیریه ټولنه هم لاس کوي ، چې پدې روزنیزو مرکزونو کې ( ۱۳۵۹ ) زده کوونکي او ( ۶۰ ) کسو پوري استادان ، مامورین او ډاکتران شامل دي .

همدارنګه د کانو او صنایعو ریاست په سږ کال کې ډیري کړني تر سره کړي دي چې د یادوني وړ کار یې د جنوب لویدیځ زون اړوند د کندهار نخي فابریکه ، پشمي فابریکه په هلمند کې د بست تصدي او د حجاري او نجاري فابریکي وړ کارته چمتو کړي دي .
د شورا اندام په سیمه کې ( ۲۱۲۶۰۰۰ ) متره مربع ځمکه د صنعتي پارك په نوم ټاکل شوي ده چې دا ځمکي به په ملي تجارو ویشل کیږي ترڅو هغه سرمایه داران چې په هیواد کې دننه او بهر دي خپله پانګه په کار واچوي چې له دې امله به هیواد والو ته په خپل کور کې ګټه په لاس ورشي .

د کندهار دګمرك ریاست چې د اسلامي تحریك د زرغونیدو سره په کار پیل کړی د هغه دودانیو ترمیم د مامورینو دفترونه او د تجارو د مالو د ساتني سرایونه په بشپړه توګه جوړ شوي . ګمرك هڅه کوي چې له تجارتي مالونو مناسب محصول تر لاسه کړي .دد غه ګمرك له لاري بهر ته وچه میوه ، لنده میوه ، پوستونه ، وړی او پنبه دی دغه مالونه چې د تورغونډۍ بولدك اوله نورو لارو بهر ته استول کیږي د یو پلاوي له لوري تشریح او کنټرول کیږي چې عاید یې د لایحی له مخي بانګ ته لیږل کیږي . وارداتي مالونه چې ترانزیت راځي د اسانتیا لپاره د بولدك په ګمرك کې معاینه کیږي . د هوا د لاري چې د مالونو کوم لیږد را لیږدکیږي په هوایی ډګر کې د ګمرك د څانګي له لوري معاینه کیږي پدې څو کلونو کې ګمرکي عاید ۵۰ % لوړ شوي ده .
سره میاشت
د روغتیا په برخه کې سره میاشت د زون په سطحه ( ۳ ) شهري کتنځی لري چې دا کتنځی په کندهار هلمند او زابل کې ناروغان تداوي کوي . او ورسره څلور ګرځنده روغتیایی ډلګی هم لري چې په کندهار کې فعالیت لري . ددې نور روغتیائی ټیمونه په زابل ، ارزګان او فراه کې فعالیت کوي دغه روغتیائی ټیمونه تر تداوي وروسته ناروغانو ته درمل په وړیا توګه ورکوي .
سري میاشتي په دې وروستیو کې ( ۱۴ ) تنه کوچنیان چې د هډوکو بیلګوني په ناروغي اخته وو د درملني لپاره جرمني ته استولي . د بشري خدموتو په لړ کې سرې میاشتي په تیرو دو میاشتو کې د کندهار او هلمند بیوزلو ته اوړه غوړي او خورما ویشلي ده . همدا رنګه هغه مهاجري کورنی چې په دې ورستیو کې میوند ، پنجوایی ته راغلي د هري کورنۍ په سر ( ۴ ) کمپلي ، یوه تخته ترپال او یوه خیمه د سرې میاشتي د پلاوي له لوري ویشل شوي دي .
د سري میاشتي د پلټني او خپروني څانګي په تیرو دو میاشتو کې د پنجشیر د بندیانو ( ۱۴۰ ) پیغامونه د هغو کورنیو ته رسولي او د لیکونو ځوابونه یې د سره صلیب د نړیوالي کمېټي په مرسته هغوی ته رسولي د کار په مقابل کې سرې میاشتي د معروف په ولسوالی کې ( ۱۶ ) کاریزو د پاکولو مرسته په کارګرو غذایی مواد ویشلي ، چې په ارغستان او نیش ولسوالیو کې د ( ۳۴ ) پروژو په شمیر کار بشپړ شوي په ټولنه کې د لمړنیو مرستو پروګرام هم په چټکي پرمخ ځي . چې رضاکاران په بیلا بیلو سیمو کې د فعالیت راپورونه برابروي او په هرو دو میاشتو کې یې د څارني پلاوی ته سپاري .

په کندهار کې د بدني روزنې امریت ، په روان کال کې د فټبال خزاني او بهاري تورنمنټونه پیل کړي وو چې ( ۱۲ ) ټیمونو پکي برخه لرله او په پایله کې ارین لمړی ، اتفاق دوهم ، او میوند دریم ، پسرلنیو لوبو وتلي ټیمونه شول ، د کرکټ په تورنمنټ کې د کندهار د ښار شپږو ټیمونو برخه لرله او د غږو د ښکلا منتخب کلب دالمپیك ریاست په بلنه د کابل په انتخاباتي لوبو کې لومړی مقام وګټو چې دي کلپ د بریاوو د تر لاسه کولو وروسته یو کپ ، شل مډالونه او شل تقدیر نامي دالمپیك ریاست له لوري ورکړل شوي په روان کال کې د ټول پاکستان د بلوچستان د فټبال ټیم د فټبال سیالیو لپاره کندهار ته راغلی و چې پایله د کندهار د مسلم فټبال ټیم په ګټه درې د صفر په مقابل کې پای ته ورسیده

دوهمه لوبه د کندهار اتفاق ټیم او د پاکستان د چمن افغان فتبال ټیمونو ترمنځ دوه . دوه مساوي پای ته ورسیده . بیا د پاکستان د کوږك فتبال ټیم ، کندهار د ارین ټیم سره په سیالۍ کې دوه ، صفر د ارین فتبال ټیم په ګټه پای ته ورسیده .
د B ګروپ تورنمنټ په سیالیو کې ځلوینټو ازاد فتبال ټیمونو پکې ګډون درلود ، بیا د C ګروپ فتبال ټیمونو ترمنځ سیالیو کې (۶۰) ټیمونو برخه لرله .
همدا راز د کراټې سیالۍ د کندهار ښار په لوبغالي کې تر سره شوي چې فرید احمد په پورته وزن کې او احمد خالد په ښکته وزن کې لمړی مقامونه تر لاسه کړي .
د بایسکل زغلولو په لوبه کې چې لسو ټیمونو برخه لرله په A ګروپ کې استاد حبیب اله او په B ګروپ کې تاج محمد لمړی مقامونه وګټل ، د (۲۰) کیلو متره ځغاستې په لوبو کې جمعه خان ، مجاور او شیراغا پرله پسې لومړي . دوهم دریم را ووتل . چې په سږ کال کې د معیوبینو د نړیوالې ورځې لمانځنې په نیت د میعوبینو دبایسکل ځغستې لوبې تر سره شوي



په روان کال کې د کندهار په ملکي هوائي ډګر کې (۷) مدیریتونه فعال شوي چې خپلې ورځنۍ چارې په ښه توګه پرمخ بیایي چې سږ کال د میګریشن په نامه شعبه فعاله شویده چې د هوائي ډګر د روان کال ټول عواید (۲۱۲۸۴۹۹۹۳) افغانۍ کیږي . د هوائي ترافیك مخابري په روان کال کې (۱۱۸) کورنۍ او (۹۹) باندني الوتني کنترول کړیدي د لیدنو په داخل کې (۱۰۰۰) د هوا پیژندنې تلګرامونه تبادله شوي دي په سږ کال کې (۱۴۸) د ملګرو متلو د الوتکو الوتني (۹۸) د سره صلیب او (۱۳) د کاناډا د هغو الوتکو چې د کانو او صنایعو وزارت کرایه کړي وه الوتني شوي دي . د کندهار هوائي

ډګر د حفظ او مراقبت له لوري دترمنل دننې او باندني برخې د مرمت او پاکې کار په بشپړه توګه شویدی ، د ترمنل په داخل کې د ګلونو کرنه او د یو حوض پاکول او د هغه شا او خوا ګلان کرل شویدي د مساپرو د استفادې لپاره د اوبو کمبنت له منځه تللی او د اوبو پمپونه درول شوي دي د تاور په سر او د ترمنل په بام برقي بطی یاروشن اندازونه نصب شوي دي چې د اړتیا په وخت استفاده ځنې کیږي . خرابه او هغه ځمکې چې کنبت نه پکې کیده اوس د کنبت او کرنې لپاره چمتو شویدي د هوائي ډګر په بیلا بیلو ساحو کې (۷) څاګانې د اوبو د کمښت د لرې کولو لپاره ایستل شویدي او په ځینو واټر پمپونه نصب شویدي د میلمنو او مسافرو لپاره یو میلمستون موجود دی چې د خوراك او پاکې ټولې چارې پکې تنظیم شویدي . د میلمستون ترڅنګ پاك تشنابونه او هغه غسل خانې چې خرابې شوي وي اوس د استفادې وړ دي د مسافرو لپاره یو هوټل او یو کانتین فعالیت کوي او په روان کال کې د مسافرینو د اړتیا د لرې کولو لپاره کولرونه او یخچالونه درول شویدي . د نجاري او تلدواني د سامان دساتنې تیاری شویدي د اجرانو او مستخدمینو لپاره د استوګنې کوټې اماده شویدي . د هوائي ډګر د بیر غونو لپاره پایې درول شوي (۱۷۵) کوچنې بیرغونه په بیلو بیلو رنګونو وریوري ترل شویدي . د میلمستون لپاره نوی ودانۍ جوړیږي چې کار یې روان دی د میلمستون د ساحې په دننه کې یوه ګوله ودانۍ هم جوړیږي چې دولس کوټې لري . چې د کنفراسونو تالار هم د جوړیدو په حال کې دی . یو باب مسجد شریف چې تاکاوي هم لري په پاخه او اساسي ډول جوړیږي .





دکندهار دنشه یی موادو د کنترول اداره د عالیقدر امیرالمومنین (۱۴۲۱) کال د ربیع الاخیر (۲۶) او (۱۶) گني فرمان له مخې چې په ټول هیواد کې یې د نشه یي موادو استعمال او کرنه مطلق وځنډوله عملي گام اخستی ، د نشه یي موادو د کنترول د اداري همدا فرمان د لاغیزمنتوب لپاره د حوزي په لري پرتو سیمو او کلو کې هم کرونده گرو ته ورساوه ، په هغو سیمو کې چې زیات کوکنار کرل کیدل ځانگړي پلاوي د هغو د مخنیوی او له منځه وړلو لپاره استول شوي ده. دا راز د نشه یی موادو د استعمال د مخنیوی لپاره او د هغوی د زیانونو د خلکو او اولس د خبرتیا لپاره ځانگړي غونډي وشوي ، د تبلیغاتو لپاره پوسترونه چاپ او په عامو وگړو ویشل شوي . او خلکو ته دا وښودله شوه چې د هغه په ځای گټور نباتي بوټي وکري ، ان د جنوب لویدیځ زون د ټولو ولسوالیو په سطحه شورا گاني جوړي شوي چې ترڅو د مخدره موادو کنټرول پروگرام په منظم ډول وڅارل شي . چې د مخدره موادو د کنټرول اداره دمخدره موادو د مخنیوي د نړیوال پروگرام سره په دې کار کې هم غاړي وو ، چې پدې کار کې تر اوسه (۲۵۸۸) کلي څارل شوي دي په دې اړه د (U NDCP) چارواکي باندني خبریالان د مرستند ویه ټولنو پلاوي د جنوب لویدیځي حوزي په ټولو ولسوالیو او کلو گرځیدلي او هرڅه یې د سر په سترگو لیدلي او ځکه نړیوال مطبوعات هم اوس دا ښیي چې د نشه ای موادو مخنیوی په عملي توگه شوي دی . چې په روان کال کې د صفر په لمړنی او د همدې میاشتي په (۱۴) نیټه په کوتل مرچه او هوائی ډکر کې یوځل (۶۵۰) کیلو او دوهم ځل (۵۰۰۰۵) کیلو پاخه چرس چې د چاکلیټو په بڼه په ډیر مهارت په ځانگړو کڅوړو کې ځای په ځای شوي وه ونیول شول ، او بیا د سږ کال د شعبان د میاشتي په ۱۳ او ۲۰ مه د هیروئینو کارخاني د بولدك په ولسوالی کې له منځه یووړل شوي دا راز د مخدره موادو د کنټرول اداري د نشه یی موادو د مخنیوي عالی اماراتي کمسیون په سرلاري د هلمند په ولایت کې د رجب د میاشتي په ۲۸ ، ۲۹ او ۲۵ نیټه د هیرئینو جوړولو فابریکي له منځه یووړي او اوس همدغه اداري خلکو او کروندگرو ته د غنمو اصلاح شوي تخمونه ویشلي ، همدا راز گټور نباتات لکه گلپي ، پیاز ، توره اوسپینه ځیره هم پدې کې شامل دي همدا راز خلکو ته د باغ او باغداری گټوري لارښووني کوي .

د کندهار د ترانسپورت ریاست بیا په خپل واړپه سږ کال کې د هیواد په ددنه کې (۱۶۵۰۰۰۰) یو میلیون شپږ سوه پنځوس زره ټنه تجارتي خوراکي مواد ، د کروند گرو لپاره کیمیاوي سره او هم یې (۱۸۰۰۰۰۰۰) یو سل او اتیا میلیونه لیتره ډول ډول روغنیات د هیواد ټولو ولایتونو ته لیږدولي . او په همدې کال کې ترانسپورت (۷۵۰۰۰۰) مسافرین د یوه ولایت څخه بل ته او (۱۶۰۰) کورنی مالدار د وچوبې له کبله د خپلو مالونو سره د هیواد شمالي ته په وړیا توگه لیږدولي ، چې پدې کال کې موټر لرونکو هم پوره مرسته کړیده .

همداراز ترانسپورتي اتحادیو او ازاد ترانسپورت په مالي مرسته یوه ودانی او یو جماعت پرته له اماراتي بودجي د ترانسپورت ریاست لپاره ودان شویدی . او په سږ کال کې ټول کلني عاید یې اماراتي بودجي ته لیږ دولی .



# خبرونه او راپورونه

## اسامه سپارل خپل حق گڼي خو د (۸۰۰) تنو قاتل ته پناه ورکوي

### عالیقدر امیرالمومنین د پاکستان د کورنیو چارو له وزیر سره د کتنې په ترڅ کې

امریکایان خپلي شخصي غوښتني بین المللي اصول گڼي خوز موږ حقوقو ته په سپکه سترگه گوري. عالیقدر امیرالمومنین په کندهار کې د خپل کار په دفتر کې د پاکستان د اسلامي جمهوریت د کورنیو چارو وزیر محترم معین الدین حیدر د کتني لپاره خپل حضور ته ومانه، د مجلې خبریال لیکي: په دي کتنه کې په داسي حال کې چي د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر محترم مولوی وکیل احمد متوکل د مالیي وزیر محترم ملا اغاجان معتصم د جنوب لویدیځ زون تنظیمه رئیس او د کندهار والي محترم ملا محمد حسن رحماني او د بهرنیو چارو وزارت سیاسي معین محترم ملا عبدالجلیل اخند هم حاضر و لومړی د پاکستان د کورنیو چارو وزیر د پاکستان داجرائیه کمیټي د رئیس محترم فرویز مشرف پیغام د عالیقدر امیرالمومنین حضور ته وړاندي کړ، وروسته يې د افغانستان د خلکو د ستونزو په نسبت د پاکستان د مشرتابه د مقاماتو ژوري اندیښني څرگندي کړي، وروسته عالیقدر امیرالمومنین وویل: داسلامي امارت پالیسي د نړیوالو قوانینو سره هیڅ راز مغایرت نه لري، خو د نړۍ ځني مغرور قوتونه، زموږ دودیز او دیني اصول نه شي زغملای موږ باید، ووایو چي د اسلامي هیوادونو او گاونډیو هیوادونو سره هیڅ راز ستونزه نلرو، او له دیپلوماتیکي لاري، هغه کوو چي خپلي نړیوالي اړیکي په منظمه توگه وساتو خو حقیقت دادی چي ځني کفري ځواکونه، په تیره امریکا خپلي غوښتني حقیقت بولي خو زموږ پر حقوقو باندي سترگي پټوي د بیلگي په ډول، اسامه

ابن لادن چي امریکا ورباندي شك لري تسلیمول يې خپل حق بولي خو په مقابل کې، جنرال عبدالمالك، چي څه د پاسه ۸۰۰ تنو زرو تنو طالبانو قاتل دی پخپلي غیږ کې نیسي کله چي موږ د هغه غوښتنه کوو هغوی زموږ غوښتني ته هیڅ راز ارزښت نه ورکوي، ځکه په حقیقت کې ټول خپرنیز وسایل د امریکا په واك کې دي او ټول شخصي کټي د مطبوعاتو په واسطه قانوني اصول بولي، د بل خبر له مخي محترم مولوی وکیل احمد متوکل له دغه کتني دمخه د پاکستان د کورنیو چارو وزیر سره ددواړو هیوادونو ترمنځ د علاقي وړ موضوعگانو په اړه خبري وکړي.

## کمکهار مردمي و امارتي به مهاجرين مقيم هرات با ابعاد گسترده ادامه دارد

نحوه کمك رساني به مهاجرين کمپهای هرات، اخيرا در ملاقات محترم ملاخیر الله خيرخوا رئيس تنظيمه زون شمال غرب و والي هرات به اقاى ايريك ديمول، تنظيم كننده كمك هاى بشري و انكشافي ملل متحد و سفيران كشورهاى جرمني، كانادا و سويتزرليند، در اسلام اباد مورد برسي قرار گرفت خبرنگار مجله خلافت مي نويسد: در اين ملاقات محترم مولوى فضل الله معاون رياست ارتباط خارجه و محترم هاشمي مدير تشريفات ان رياست نيز حضور داشت. نخست محترم ملا خيرالله خيرخواه ضمن خوش امديد گفتن به مهمانان بر تنظيم و توسعه كمكهاى مهاجرين و اركان كمپ هاى هرات با در نظر داشت مشكلات اخير كه از ناحيه سردي پيش امده است تاكيد ورزيد. بعدا محترم ايريك ديمول با تشريح اهداف كارهاى هيات به حوزه شمال غرب اظهار داشت به مسله كمك به مهاجرين مقيم هرات، اكنون در محراق توجه مجامع بين المللي قرار دارد ومن سعى خواهم كرد تا پروسه كمك رساني به مهاجرين به نحوبهتر اجرا شود.

طبق يك خبر ديگر:

سلسله كمكهاى مردمي به مهاجرين هرات، نيز اخيرا ادامه داشت محترم محمد رفيق مجددى رئيس شوراى نماينده گان مردم و عضو كميسيون جمع اوري كمك هاى به گزارشگر خلافت گفت كمك ها نقدي كه اخيرا از سوى مردم هرات

برادران مهاجر مواصلات کرده است . بالغ بر یك هزار و پنجاه لك افغاني میگردد و به تعداد سه عراده موتر خاور که در انها کفش ، لباس و لحاف موجود بود ، همراه با یك صدوسي وسه لك افغاني از قلعه ریك ، محله خواجه ها ، منطقه پویلزای ها ، منطقه منکر ، و قلعه نو مربوط ولسوالي زنده جان به کمیسیون مواصلات کرده است نابُرده متذکر شد : که به تعداد سه عراده موتر مملو از کفش ، لباس ، ولحاف در کمپ شیدای برای مهاجرین و مستحقین تحت نظر هیات موظف توزیع گردید

نامبرده علاوه کرد اخیرا یك مقدار اجناس و مواد امدادي جمع شده از طریق کمیسیون در کمپ های مورد نظر همکاري بیدریغ نموده است اظهار سپاس و امتنان شود .

همچنان گزارش گرما میگوید : به سلسله امداد های امدادي به مهاجرین هموطن مادر ولایت هرات یکتعداد تجار خیراندیش کشور با اهدای مبالغي بین هموطنان .درین میهني شانرا ادا نمودند .

## اب اشامیدني صحي فراهم نمود

پروژه ابرساني قریه سرخ اب ولسوالي محمداغه ولایت لوگر ظهر چارشنبه طي مراسم خاصي افتتاح گردید خبرنگار مجله گزارش میدهد . قریه سرخ اب که در ۱۳۷ کیلو متري مرکز لوگر قرار دارد طي یك سال با قلت اب اشامیدني مواجه بودند . با تامین شدن این شبکه از جانب موسسه اکرو حدود ( ۶۰۰ ) فامیل از نعمت اب اشامیدني مستفید گردیدند در مراسمي که به همین مناسبت از جانب اهالي ان منطقه تدویر یافته بود علاوه از منسوبین و نمایندگان موسسات اکرو ( ARE . WFP ) و کندا فند ، محترم مولوی ضیاالرحمن مدني والي ولایت لوگر . محترم مولوی حبیب الرحمن ولسوال محمد اغه وجمعی از خبرنیکاران داخلي اشتراك ورزیده بود .

محترم ( مدني ) والي ولایت لوگر در حالیکه کار پروژه را رسما افتتاح نموده ضمن سخنراني مختصر احداث این شبکه در شرایط کنوني از جانب موسسات خیریه بین المللي یك اقدام نیك و انساني خوانده افزود این پروژه که امروز بدست پرتوان فرزندان اصیل این وطن اعمار گردیده قابل قدر است . من انجنیران این موسسه اظهار سپاسگذاري میکنم که کوه به کوه میگردند و برای ما اب اماده میسازد .

بعدا محترم بریالي ( عمرزی ) رئیس موسسه اکرو اهمیت این پروژه را به حاضرین بیان داشت

## د هیواد ملي سوداګر د لویو لارو په ترمیمولو کې مرسته کوي

د هیوا ملي سوداګر د لویو لارو په بیا رغولو کې مرسته کوي .

د خلافت خبریال لیکي : په هغه غونډه کې چې د هیواد ملي سوداګرو او د سوداګرۍ د اطاقونو د ریاست د چارواکو په ګډون په دغه ریاست کې جوړه شوي وه د هیواد ملي سوداګرو د لویو لارو د ترمیمولو او بیا جوړولو په برخه کې د فواید عامې د وزارت سره خپله هر راز همکاري څرګنده کړه . دغه راز د جلال اباد په ښار کې د څلور لارۍ لاندي د میترو جوړولو کار ، د هیواد ملي سوداګرو پر غاړه اخیستی خو پر مارکیټ جوړ کړي چې ترځمکې لاندي دوکانونو کرایه به د شلو کلونو لپاره د ملي سوداګرو وي او وروسته امارتي ملکیت ګرځي

## د بتانو په ماتولو کې یو مفهوم دی

دا د نړیوال شور ماشور او خپګان ښکاره کول پخپله ددې شاهدي ورکوي چې بتان او مجسمي خلکو د خان معبودین ګرځولي . د بتانو د ماتولو د اعلامیې په اړه عالیقدر امیرالمومنین د کندهار د شریعت ږغ راډیو د خبریال د پوښتني په ځواب کې چې ایا نړیوالو مطبوعاتو د بتانو د ماتولو له امله ډیر شور جوړ کړی دی ددې اصلي علت څه دی . داسي ووېل :

علماء کرامو چې دا فتوی صادره کړي ده هغه په دې خاطر چې د بتانو د ماتولو تر شا لوی مفهوم دی هغه مفهوم دا ، مونږ متوجه یو هغه دا دی چې باید یوازي او یوازي د واحد خدای عبادت وسي ترڅو د بتانو او مجسمو اهمیت ورك شي ځکه چې د بتانو او مجسمو وضعه لپاره د عبادت راغلي ده دا د خلکو شور ماشور او دومره خوابدیدل پخپله ددې شاهدي ورکوي چې بتان او مجسمي خلکو د خپل خان معبودین ګرځولي دي

# د اسلامي امارت په اړه د شيخ حمود بن عقلا الشعيبى فتوى

يادونه :
شيخ حمود الشعيبي د سعودي عربستان له نامتو او وتليو علماو څخه دی . د اسلامي امارت په اړه د نوموړي شيخ فتوی نبه سپړلي او مد لله ده . دا فتوی د اسلامي نړۍ د علما و او ټول مسلمان امت نمايندګي کوي د نوموړي شيخ فتوی د امت د علماو او نيکو انسانانو دضمير اواز دی شيخ به مسلمان امت باندي د اسلامي امارت مرسته واجبه بولي او د امارت د شرعی حيثيت په اړه يې قاطع او پاخه دلائل وړاندي کړي دي . په اخر کې شيخ د امارت مسولينو ته په لنډو او مختصرو ټکو کې توصيه کړې ده چې په واقعه کې خورا دروند نصيحت او د غور خبري دي ګرانو هيوادوالو ته ددې فتوی عربي متن او پښتو ژباړه دواړه وړاندي کوو
( اداره )

## حول شرعية حكومت طالبان الشيخ حمود بن عقلا الشعيبي

فضيلة الشيخ حمود بن عقلا الشعيبي حفظه الله
يشك بعض الناس في شرعية حكومته طالبان في افغانستان . فما حقيقة هذه الحكومة ؟ نريد جوابا مؤيدا بالادله . والله حفظكم .
الجواب -
الحمد الله رب العالمين والصلوة والسلام على نبينامحمد وعلى اله وصحبه اجمعين وبعد : ان تقييم الدول والحكم عليها بالشريعة و عدمها يتوقف على امور اولا : تحكيمها لكتاب الله وسنة نبيه محمدصلى الله عليه وسلم فى جميع المرافق فى القضا وفي غيره من مجالات الحيات ثانيا:- كمان من اهم مقومات الدولـه الارض ومعلوم ان حكومة طالبان تسيطر على ٩٥ % من اراضي الافغان .
ثالثا :
ان تكون علا قاتها وارتباطاتها بالدول الاخرى قائمة على تعاليم الدين الحنيف . ودولة طالبان فى افغانستان متحققه فيها هذه الامور ، فهى الدولة الوحيدة فى العالم التى لا يوجد فيها محاكم قانونية و انما حكمها قائيم على شرع الله ورسوله فى المحاكم القضائية وفى الوزارات و فى الدوائر وفى الموسسات .اماما عداها من الدول الاسلامية فمنها من تحكم بالقوانين الوضعيه الصرفة ومنها من تدعى تطبيق حكم الله ورسوله مع مايوجد فيها من محاكم قانونية صرفة ، وحتى المحاكم الشرعية فى مثل هذه الدول يكون معظم احكاميها قائما على التنظيمات و التعليمات التى من وضع البشر ، فلا فرق بينها و بين القوانين الوضعية الا بالاسم.و من الا دلة على ان حكومة طالبان حتومة شرعية كون الدول الكافرة عدوة الاسلام و المسلمين تعاديها و تفرض عليها الحصار الا قتصادي و تقا طعها و تضيق عليها الخناق بسبب انتمائها الاسلامي ليس الا. وقد تقوم بمها جمتها عسكريا كماقامت امريكا بهجوم صاروخي عليها ، فى الوقت الذي تتلقي فيه المعارضية الدعم المطلق بالمال و السلاح و الخبرات من قبل الدول الكافرة وهذا يدل دلالة و اضحة على شرعية حكومت طالبان و ان الحق معها فى نزا عهامع المعارضة ولا يقدح فى شرعية حكومت طالبان كون الدول الكافرة لم تعترف بها كدولة وحكومة . وحيث قد علم ان حكومة طالبان حكومة شرعية قد تو فرت لها مقومات الدولة كماسبق غير انها تحتاج الى الدعم المالى لقلة مواردها الماليه فنهيب با خواننا المسلمين ان يلومو ابد عمها ماديا وتاييد ها اعلا ميا لان اعداء الاسلام و عملائهم لبسوا على كثير من الناس و ضللو هم فالتبس عليهم الامر فيما يتعلق بحقيقة هذه الدولة المسلة وهى مادامت فى حرب مع معارضيها فان الجهاد معها مشروع لان الجهاد معها ضد معارضيها الذين تد عمهم قوى الكفر كامريكا و بريطانيا وروسيا والذين يطالبون بان تكون الدولة فى افغانستان قايمة على نظام الحكم فى الغرب ، فاذا كان الامر كذلك فانه يجب دعم دولة طالبان و الجهاد معها من باب نصرة الاسلام والتعاون على البر والتقوى ، قال تعالى ( وتعاونو اعلى البرو التقوى ) وقال (ص) مثل المومنين فى تؤد هم و تعاطفهم و تراحمهم كمثل الجسد الواحد اذا اشتكي منه عضو تداعى له سائر الجسد بالسهر والحمى وقال (ص) المسلم للمسلم كالبنيان يشد بعضه بعضا و شبك بين اصابعه . ومن اعظم ما امتازت به حكومة طالبان المسلمة :
١ - اهتمامها بمناصرة المجاهدين والذب عنهم وهذا مشهور لهذه الدولة .
٢ - انه لا يوجد فيها اعلام محرم مخالف للشريعة
٣ - انها جادة وصادقة فى اقامة الشعائر الاسلامية من اقامة الحدود و تتبع المنكرات الظاهر و المعاقبة عليها و اسلمة التعليم و الا علام
٤ - انها الدولة الوحيدة التى تسير فى قضايا المرأة على مقتضى الشريعة . لا على وفق نهج العلمانيين الذين يد فعون المرأة الى التبرج والسفور و مخالطة الرجل و قيادة السيارة و نحوذ لك .
٥ - انها الدولة الوحيدة التى بها وزارة مستقلة باسم وزارة لامر بالمعروف والنهى عن المنكر و فى الختام :
فاننا ندعوا لحكومه طالبان بالتوفيق والهداية فاننا نهيب بهم على الثبات على [illegible] الاسلامية العظيمة وعلى التمسك بالكتاب والسنة ونهج السلف الصالح . والا يكترثوا بضغوط دول الكافرة وغيرها . قال تعالى و من يتق الله يجعل له مخرجا و يرزقه من حيث لا يحتسب . وقال تعالى ( ومن يتق الله يجعل له من امره يسرى ) و قال تعالى والعاقبة للمتقين ) ولهم اسوة بالرسول (ص) و المسلمين معه حيث حاصر هم الكفار فى الشعب فى [illegible] ليصد هم عن هذا الدين وكانت العاقبة للمتقين .
[illegible] بالدول الاسلامية حذو طريقة طالبان فى تحكيم الشريعة بجميع [illegible] الحياة فى القضاء و الاعلام و الاقتصاد و السياسة الداخلية والخارجية و [illegible] والتعليم و الا يقلدوا الغرب فى فجر [illegible] و ضلا لاته .
وصلى الله وسلم على نبينا محمد وعلى اله وصحبه اجمعين
املاه فضيله الشيخ
حمودبن عقلا الشعيبي

ژباړه :
پوښتنه : محترم فضيلت مآب شيخ حمود بن عقلا الشعيبى ! ځيني خلک د طالبانو د حکومت په شرعی حيثيت کې شک کوي . نو ددې حکومت حقيقت څه دی ؟ مدلل خواب غواړو خدای ( ج ) مو وساته .
ځواب : الحمد الله رب العلمين والصلوة والسلام على نبينا محمد وعلى اله واصحابه اجمعين وبعد !
د يوه حکومت ويش او د هغه د شرعيت او نه شرعيت حکم په لاندينو امورو پوري تړلی دی :
لومړی - په قضا او د ژوند په ټولو ادارو کې د قرانکريم او سنت نبوی صلى الله عليه وسلم جاري کول او تنفيذ
دويم - د يوه حکومت د قيام له پاره ځمکه لومړی شرط دی او ښکاره خبر ده چې د طالبانو حکومت د افغانستان د خاوري په ٩٥ % په سلو کې حاکميت او تسلط لري
دريم - له نورو هيوادونو سره به يې د شريعت له اصولو سره سم تعلقات او اړيکي ټينګي کړي وي او د طالبانو حکومت دا خبره په عملي

توګه ثابته کړې ده او په نړۍ کې دا یواځنی حکومت دی چې په هغه کې غیرشرعی محاکم او عدالتونه نشته .
بلکې د دوی د محاکمو ، وزارتونو او نورو ادارو کره وړه له شریعت او سنت نبوي سره برابر دی په نورو اسلامي هیوادونو کې ځیني داسي دي چې یواځي د موجوده وخت معاصر قوانین پکي چلیږي او ځیني داسي دي چې د الله او د رسول صلی الله علیه وسلم د حکمونو د نفاذ د عوی خو لري خوله هغه سره سره هلته غیر شرعی محاکم هم شته بلکې په دي هیوادونو کې په شرعی محاکمو کې د انسان وضعه شوي حکمونه اجرا کول کیږي نو ددې او نورو قوانینو ترمنځ یواځي د نوم توپیر دی په دي دريو خبرو چې غور وشي نو معلومه به شي چې د طالبانو حکومت په مکمله توګه اسلامي او شرعي دی .
له دې پرته د طالبانو د حکومت د شریعت لوی دلیل دا دی چې ټول کافر او اسلام دښمن حکومتونه د هغوی دښمنان ګرځیدلي دي . په دوی یې اقتصادي بندیزونه لګولي دي . دوی تنګوي او د یواځي کولو او ختم کولو له پاره یې ملاوي تړلي دي . دا هرڅه له طالبانو سره ځکه کیږي چې هغوی د یني شعایر ژوندي کړي دي او بله هیڅ وجه نشي کیدای . آن تر دې پورې چې په دوی باندي نظامي یرغلونه وشول او امریکا میزایل پرې وه اورول دا په داسي حالت کې چې د دوی له مخالفینو سره د اسلام ددښمنانو او کفري ځواکونو له خوا په فوق العاده توګه اقتصادي ، نظامي او تخنیکي مرستي جاري دي . دا ټولي خبري د طالبانو د حکومت د شریعت او اسلامیت له پاره پاخه دلائل دي .
له باغیانو سره په جګړه کولو کې طالبان په حقه دي . او د کفارو لخوا د دوی په رسمیت نه پیژندل د هغوی د حکومت شرعیت او اسلامیت ته هیڅ تاوان نه رسوي .
دا حکومت له اقتصادي ستونزو سره مخامخ دی وسائل نلري دوی د اقتصادي مرستي زیات مستحق دی . دا اوس زموږ د مسلمانانو وروڼو مسولیت دی چې هغوی له دي حکومت سره په ښکاره توګه د مرستي لړۍ پیل کړي او د رسنیو وسائلو له لاري دی ددوی د مرستي له پاره اواز پورته کړي ځکه د اسلام دښمنانو او د هغوی لاسپوڅو حقائق مسخه کړي دي او ددې مسلمان حکومت د اصلي حقیقت په اړه یې خلك ګمراه کړي دي خرنګه چې دا حکومت له خپلو باغیانو سره په جګړه بوخت دی نو دی جنګ ته جهاد ویل کیږي .

ځکه له باغیانو سره د امریکا برطانیې او روس په څیر ځواکونه مرستي کوي او ملاتړ یې کوي . هغوی په حقیقت کې د همدې لاسپوڅو په ذریعه په افغانستان کې د غربي نظام پلي کول غواړي چې کله حالت داسي وي نو په ټولو مسلمانانو باندي واجب ده چې د اسلام د مرستي په اساس او د نیکیو او تقوی د معاونت او مرستي په بنیاد باید د طالبانو د حکومت او جهاد مرسته وکړي لوی څښتن وایی : وتعاونوا علی البر والتقوی
ژباړه : تاسو له یوه بل سره په نیکیو او تقوی کې مرسته وکړئ .
رسول الله صلی الله علیه وسلم وایی : مثل المؤمنین فی تواد هم وتعاطعهم و تراحمهم کمثل الجسد الواحد اذا اشتکي منه عضو تداعی له سائر الجسد با لسهر والحمي .
ژباړه : د مومنانو په خپلو منځونو کې له یوه بل سره مینه کولو، مرسته کولو، ترحم او مهرباني کولو، کې داسي مثال لري لکه د یوه بدن غړي او اعضا که له دي بدن څخه یو غړی څه رنځ او شکایت ولري نو نور ټول بدن ورسره بې خوبه او په تبه اخته وي .
او رسول الله صلی الله علیه وسلم وایی : المسلم للمسلم کالبنیان یشد بعضه بعضاً وشبك بین اصابعه .
ژباړه : یو مسلمان د بل مسلمان له پاره داسي مثال لري لکه دیوال . د خښتو له یوې او بلې سره په یو ځای کیدو او ټینګیدو باندي د دیوال وجود منځته راغلی دی مسلمان به هم له یو بل سره یو کیږي د حدیث راوي وایی چې رسول الله ددې حدیث له فرمایلو وروسته د خپلو لاسونو ګوتي په یوه بل کې سره دننه کړي او تشبیك یې وکړ .
د طالبانو د حکومت تر ټولو لوی امتیازات او ځانګړني په لاندي ډول دي :

١ د مجاهدینو د مرستي او نصرت اهتمام او د هغوی ساتنه او د دوی دا کارنامه له هیچا څخه پټه نده .
٢ د شریعت مخالفه میډیا او مطبوعات هلته هیڅ وجود نلري
٣ دا حکومت د منکراتو په له منځه وړلو کې ، د اسلامي شعائرو او حدود الله په قیام کې ، د ښکاره منکراتو له منځه وړلو او مرتکبینو ته په سزا ورکولو کې ، د زده کړي او مطبوعاتو په شعبو کې اسلامي اصولو مراعت کولو کې ، خورا زیات مخلص او رینښتوني دي .
۴ دا د نړۍ یواځنی حکومت دی چې له ښځو سره د شریعت مطهره په رڼا کې چلند کوي د سیکو لرستانو او علمانینو د تمناو او هیلو په خلاف ښځي یې له بیځایه ګرځیدلو ، بې

حجابي ، له نارينه و سره ګډون او اختلاط څخه منعه کړي دي . او نه يې پرېږدي چې د غير شرعی کارونو ارتکاب وکړي .
5 دا د نړۍ يواځنی حکومت دی چې ( امربالمعروف او نهی عن المنکر وزارت ) لري .

## ( د شيخ حمود شعيبي مهمه توصيه او د پاړ خوځبري )

او په اخر کې . . . لکه څرنګه چې موږ هغوی ته د توفيق او هدايت مونډلو دعا کوو هغوی ته دا توصيه هم کوو چې په دې سترو اسلامي امتيازاتو او ځانګړنو کلك ودريږي.
په قرانکريم ، سنت نبوي او د سلفو او نيکو علماو په تګلاره کلکي منګولي ولګوي .
او د کفري حکومتونو له بنديزونو او نورو اقداماتو څخه ونه ويريږي .
لوی خدای وايي : ومن يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لايحتسب .
ژباړه : څوك چې له خدای ( ج ) څخه وويريږي نو هغوی ته به د خلاصون لاره پيدا کړي او له داسي لوري څخه به رزق او روزي ورکړي چې دده په ګومان کې به هم نه وي . يو بل ځای فرمايي : ومن يتق الله يجعل له من امره يسرا . ژباړه : څوك چې له خدای څخه وويريږي نو په خپل امر کې به اساني ورته پيدا کړي . بل ځای فرمايي : والعاقبة للمتقين . ژباړه : اخري انجام او برياليتوب به د متقيانو په برخه وي طالبان د رسول الله او له هغه سره د مسلمانانو سنت په ځای کوي ځکه هغوی هم له خپل دين څخه منعه کولو په خاطر په شعب او دره کې د کفارو لخوا بند کړل شوي ووخو برياليتوب د متقيانو په برخه شو . دا راز اسلامي هيوادونو ته هم توصيه کوو چې د طالبانو په لاره ګامونه کيږدي . د ښځو د حقوقو او زده کړي په ډګر کې شريعت پلی کړي او د لويديځ په تقليد سره ځانونه ګمراه او هلاك نکړي وبالله التوفيق وصلى الله وسلم على نبينا محمد وعلى اله وصحبه اجمعين .
د فضيلت مآب شيخ حمود بن عقلا الشعيبی په قلم

### د حقيقت اظهار

که زه د حقيقت په اظهار کې زيان ووينم پروانشته خو چې حقيقت زما د چوپوالي په وجه زيان ونه ويني
( متر لينګ )

## حقه وينا د حق پالونکو علماو شعار دی

قرانکريم د مؤمن په صفاتو کې راوړي چې مومنان هغه دي چې د ملامت کونکی له ملامتي څخه نه ويريږي . ( ولا يخافون لومة لائم ) په دې اړه اسلامي تاريخ ته ورګرځو او د حق پالونکو علماو يوه نمونه ستاسو مخته ږدو عزالدين بن عبدالسلام ددي لاري هغه نوميالی عالم دی چې د وخت دو اکمن زور او زياتيۍ ندی تسليم شوي د هغه بيلاري او ناروا ته پته خوله ندی پاتی شوي د واکمن خيانتونه يې د مسلمانانو په منځ کې څرګند کړي دي .
دوخت واکمن اسماعيل له فرنګيانو سره جوړه وکړه په داسي حال کې چې فرنګيان د مصر د اسلامي حکومت سره په جګړه بوختوو په دې وخت کې د مصر له حکومت سره ددمشق د واکمن اسماعيل مخالفتونه اوج ته رسيدلي و نو ځکه يې له فرنګيانو سره جوړه وکړه .
فرنګيان به دمشق او شاوخوا سيمو ته راتلو او له مسلمانانو څخه به يې وسلي اخيستي عزالدين بن عبدالسلام په دې وخت کې د مسلمانانو شيخ الاسلام و په هغه وخت کې شيخ السلام عزبن عبدلسلام د واکمن له فرنګيانو سره جوړه وغندله او فتوی يې ورکړه چې په فرنګيانو باندي وسلي پلورل حرامي او ناروا دی ځکه هغوی د مصر له اسلامي حکومت سره په جګړه کې کارځني اخلي شيخ الاسلام په دې فتوی سره د فرنګيانو په اشاره د وخت د واکمن لخوا د شيخ الاسلام له منصب څخه لري کړل شو او بندي يې کړ . له څه مودي حبس وروسته د وخت واکمن عزالدين بن عبدالسلام ته استازي ور وليږه او هغه د باچا لخوا دا خبر ورته ورسوله چې که له خپلي فتوی څخه تيريږي او له باچا څخه ښنه وغواړي نو هغه به دی خوشي کړي او بيرته به خپل منصب درته وسپاري خو ده ورته وويل : په خدای ( ج ) سوګند چې زه دا هم نه غوارم چې دا دون همته باچا زما لاسونه ښکل کړي . اوکه داسي وهم کړي زه به له خپلي فتوی څخه تير نشم .

# رعایت ادب و حقوق دیگران از دیدگاه اسلام

سید عبدالرؤوف فقیری

خداوند (ج) پیامبرخود حضرت محمدصلی الله علیه وسلم را دارای خصایص بسیار و محامدي بی شمار قرار داد اورا از همه خلق افضل درجه اش را برتر و نزدیکي اش را به خود بیشتر و منزله اش را نزد خودشي گرامی تر ساخت. پیامبر بزرگ اسلام مظهر کامل اخلاق و تهذیب عالیه انسانی بود اصحاب را از ایستادن در برابر خود منع می کرد، و می فرمود: مانند اعجمي که نزد شاهان خود ایستاده می شوند به مقابل من ایستاد مشوید.

حضرت به مردم می گفت: سلام را دربین خود به اشکا را گوئید تا محبت تان زیاد گردد و هنگام ملاقات با یاران خود چنان با گرم جوشي و صمیمیت مصافحه می کرد ودست می داد که اصحاب در ژر فنای قلب خود این محبت و صمیمیت را احساس می نمودند. شخصی نزد رسول خدا امد و پرسید دین چیست؟

حضرت فرمودند: که خلق خوشي و انگاه می فرمایند: هرکی را خدا یتعالی خوی نیکو و روی نیکو ارزانی داشت او را خورش اتشي نکنند.

پیشوای بزرگ اسلام که همیشه به جوانان به نظر لطف و شفقت می نگریست فرمود: «به شما توصیه می نمایم که خیر خواه جوانان باشید، زیرا این طبقه دلهای خیلی نرم و استعداد هر گونه تربیه را دارند و قتیکه من به وظیفه پیغمبری مبعوث شدم اکثر جوانان از من پشتبانی کرده و غالب سالخورده گان که ترک عادت برای شان دشوار تمام می شود با من مخالفت کردند.

حضرت می فرمایند هر فرزند نیکو کاری که از روی شفقت به پدر و مادر خود مینگرد برای هرنگاهی یك حج مقبول به او دهند - از پیغمبر سوال شد؟

ایا این ثواب برای کسی که صدبار به پدر و مادر خود نظر کند هست؟

فرمودند: بلی اگر فرزندی روزی صد بار برپدر و مادر خود با رأفت نظر کند خداوند ثواب حج مقبول به او دهد.

در حدیث شریف است که: «به ازار دهنده مادر و پدر بگو هرچه خواهی بکن که بوی بهشت به مشام او نخواهد رسید و به نیکو دارنده مادر و پدر بگو هر چه میخواهی بکن که بوی دوزخ به مشام او نخواهد رسید.

مردی ازرسول مقبول (ص) پرسید که حق پدر و مادر چیست؟

فرمودند که انها بهشت و دوزخ تواند.

پیغمبر خدا در پاسخ شخص دیگری که پرسید:

قسم خوردم که درب بهشت را ببوسم چه کنم که مساوی ان باشد - فرمودند: پای مادر و پیشانی پدر خود را ببوسی مثل انست که درب بهشت را بوسیده باشي.

حدیث از خاتم پیغمبران است
که جنت زیر پای مادران است
بزن برپای مادر بوسه از شوق
که خاك پای او مشك جنانست

پیغمبر خدا در مورد حقوق همسایه فرمودند: همیشه حضرت جبرئیل در حق همسایه انقدر به من توصیه کرد که گمان بردم در اخر همسایه را به همسایه وارث خواهد کرد. ومی فرمایند: انکه خویش را سیر کند و همسایه را گرسنه نگهدارد مسلمان کامل نبود.

از جمله اداب معاشرت همسایه با همسایه انست: که از بام خانه خویش بخانه او ننگرد رسول خدا در این مورد می فرمایند انکه از سوراخ دروازه داخل خانه کدام کسی را نگاه کرده است به یقین که یك عمل نا مشروع و جرم بزرگی را مرتکب شده است.

از فرمایشات ان حضرت است: هنگامیکه دوتن سخن میگویند میان انها داخل مشو و اگر کسی کوشش کند تا سخنی را که از وی پوشیده می گویند بشنود در روز قیامیت سرب گداخته درگوش او ریزند از سخنان پیامبر بزرگ اسلام است هنگامی مردی سخن گفت و به اطراف خود نگریست ان سخن در پیش شما امانت است و چون شما سه نفر در یکجا باشید جایز نیست دو نفر بدون سومی با هم سرگوشی کنند، برای انکه مرد سومی به هراسی و اندوه می افتد.

حضرت محمد (ص) می فرمایند: انکسی که بدون اذن برادر مسلمان خویش وارد خواند نوشته او شده، پس مانند اینست که وارد اتش گردیده باشد

بقیه در صفحه ۴۲

یو غیر جانبداره څېړنه



محمد اصف (ننګ)

# د معاصر اقتصادي نظام د سقوط پيلامه

له تيرو څوصديو چې د بشرمعاملو د يو نظم او يو لړ قوانينو په چوکاټ کې ځای نيولی پدې کې تر ټولو زيات دمناقشې وړ معاملې د بشر اقتصادي معاملې دی ، او د همدغو معاملو د ډير اهميت له برکته په نړۍ کې اقتصادي فکر ، اقتصادي مکتب او يا په بل تعبير اقتصادي فلسفه زيږيدلې ده .

له کومې ورځې چې انسان له ځنګلونو اوغارونو( بدوی ژوند ) څخه ښارونو ( مدني ژوند ) ته راوتلې نو دلته مجبور شوی چې د ژوند د بقا او استمرار لپاره کار او تلاش وکړي ، سوچ وکړي د ځان او نورو د سقوط او ټکر لپاره د نجات پر لارو غور وکړي ( دي ته د اجسامو د بقا منازعه وايي ) کله چې په مدني ژوند کې د اجسامو د بقا منازعه په يو لړ جګړو شخړو او کشمکش بدلې شوې نو له همدې انساني ټولنې څخه ځينې کار فام اوږد عقل او تجربې خاوندان را پاڅيدلي د اصلاح او مفاهمې ږغ يې اوچت کړی او ددغو منازعو د حل او فصل لپاره يې قوانين وضعه کړي او په کومو ټولنو کې چې دين او انبيا ليږل شوي هلته بيا دغه منازعې او شخړې د دين په چوکاټ کې حل شوي . که د بشريت تير تاريخ ته ځير شو نو په ډاګه کيږي چې د انسانانو د ټکر اواختلاف اصلي عوامل او اسباب اکثر له اقتصادي مسائلو را ولاړ شوي دي ، ځکه چې دغه مسائل د انسان د بقا او زوال برخليك ټاکي . د تاريخ په اوږدو کې داقتصادي معاملو د حل او فصل لپاره انسان پخپله فکر کړی ( البته د خپل ماحول او چاپيريال د دستور او عنعني په نظر کې نيولو سره ) کله چې د همدې فکر او تجربو يوه برخه ( د وخت په معينه زماني مقطع کې ) تائيد موندلی نو عملي بڼه يې غوره کړې او دوام يې کړی ( ترهغو پورې چې د همدې فکر عملي ثمره خلکوته رسيده دوام يې موندلی او چې منفي اغيزي يې څرګندې شوي . بيا خلکو ورته شا اړولې او ترينه منصرف شوي نو دغه فکر خو د په خود زوال موندلی ) خو ددې ټولو فکرونو په اړه دا حق لرو چې ووايو : (( دا ټول د بشر د فکري جهدزيږنده وو ، ځکه خود هر فکر (( مکتب )) په تل کې د هماغه فکر د زوآل بذر ( تخم ) هم موجود و ، او دغه زوالي بذر بيا په خپله هم د يو فکر (( مکتب )) په توګه ظهور کړی ، چې همدې فکر هم پخپل وجود کې د خپل زوال تخم او بذر درلود . . . )) او دا ځکه چې دا ټول فکرونه د بشري عقل او سنجش زيږنده و ( الهی دستورات نه ) د هر باطل يا په بل تعبير د هر خام فکر د پوخوالي لپاره د هماغه فکر زوالي سير طی کول حتمي دی ، په تاسف سره بايد ووايو چې د بشري فکرونو (( مکتبونو )) په دې زوالي سير کې ( چې ترڅو نسبي پوخوالی ته رسيدلي ) يو خو ډير وخت ضايع

شوی طبیعی ده چې پدې زوالي مرحلې کې خورا ډېره اقتصادي منابع او مصادر هم تبدید ( خاوري ایرې ) شوي بل خوا د همدې فکرونو مولده زهر یوائې د هماغه دوري یا عصر وګړو ته بلکه نورو نسلونو ته هم په میراث پاتې شوی دی ( ددغو فکري زهرو او یا نباتو اثرات که په تاریخي لحاظ وڅیړل شي کیدای شي خلك په سوي زړونو د همدې مکتبونو پر بانیانو او موسسینو سخت لعنت ووایې . ځکه چې د همدې مکتبونو د ارشاداتو او فرامینو په اساس په بشري ټولنو کې طبقاتي نظامونه او انقسام ، فقر ، بردګي اختناق ، رکود او . . . رامنځ ته شوي ، خو دا ټول ځکه چې بشر مجبور وو الهي دستور لاندې ورته رسیدلی ) خو د طبقاتي انقسام له امله چې ځومره اخلاقي ، دیني اقتصادي ، اجتماعي ، او سیاسي بدبختۍ او ستونځې رامنځته شوي او کیږي مسولیت یې هماغو ناقصو فکرونو او مکتبونو ته راجع کیږي ، که څه هم ددې ادعا د اثبات لپاره د اروپا اقتصادي تاریخ یو ژوندی مثال دی خود وضاحت لپاره د هماغه تاریخ یو څوپاڼې را اړوو .

کله چې پر اروپا باندې کلیسا حکومت درلود . . . کلیسا د بشر د مادي او معنوی تمدن او ترقۍ پرمخ تر ټولو غټه مانع وه ، د کلیسا متعصبه او سټاټك ( بې حرکته ، منجمد ) افکارو تقریبا پنځه - شپږ صدۍ اروپا په فکري او علمي جمود کې را ګیر کړې وه او بشر یې له هر راز تطور او تقدم څخه محروم ساتلي وو ، او هرهغه فکر او حرکت چې د بشریت د فلاح او پرمختګ لپاره طرحه شوی فورا د کلیسا پرې د زندیق او د بغاوت حکم کړی او له بینه یې وړي د (( ګالیله )) او (( برونو )) وژنه د کلیسا په حکم شوی ، د کلیسا د جاسوسي شبکې (( انګیزیسیون )) لخوا ۳۰۰ زره ( دري لکه ) کسان ( چې د کلیسا د فرامینو او افکارو پرخلاف یې غوښتل خپل ازاد نظریات (( علمي نظریات )) وړاندې کړي ) د شدیدو مجازاتو په نتیجه کې وژل شوي ، ۳۲۰۰۰ علمي شخصیتونه د بغاوت او زندیق په نوم ژوندي سوځول شوي . ځکه خو تر دې دمه اروپایان دین د ملتونو افیون بولي ( چې مطلب یې هماغه منحرفه مسیحیت دی ) او ددین ( ولو هر دین چې وي ) له حکومت څخه ویریږي خو په ۱۷ - ۱۸ پیړیو کې چې کلیساسقوط وکړ او اروپا د افکارو او نظریاتو د ازادۍ معراج ته ورسیده ، بې له شکه چې پدې دوران کې اروپا د علم ، صنعت ، سیاست ، زراعت ، تجارت ، اقتصاد او . . . له لحاظ د ډیرو پرمختګونو او تمدن شاهده وه ، که له یوې خوادغه بې جلبه ازادي او بې حدوده څغاستي د کلیسا جبروتي او مستبد طلسم مات هم کړ خو له بلې خوا د ازاده نظریاتو او افکارو تراکم او زیاتوالی د مذهبي او غیر مذهبي ژوند ټول اصول مات کړل ، د ازادي په بهانه هره بې دلیله او بې برهانه طرحې د خپل وجود اثبات غوښت چې پدې سره اروپا دیوې بلې استبدادي څپې (( د منطلقي ازادۍ حق )) ښکارشوه ، او اروپا یې له نوو ستونځو سره لاس په ګریوان کړه دغه ستونځې د وضعي یا سرمایه داري اقتصاد په شکل کې ظهور وکړ .

وضعي اقتصاد :

دلته څیني هغو نظریاتو ته اشاره کوو چې دوضعي یا سرمایداري اقتصادي نظام بنیاد او اساس بلل کیږي .

طبیعي قوانین

ددې فلسفي باني ادم سیمیث بلل کیږي . دی وایي : ( . . . هر انسان له یو لړ فطري او طبیعي غرائزو څخه برخمن دی چې دغه غریزي خو د په خود داقتصادي توازن سبب ګرځي . . . ) )

دمثال په توګه د نرخ ټاکنه معمولا د یو کارګر لخوا د کار د مقدار او کمیت په اساس ټاکل کیږي ( د یو ساعت کار قیمت څو روپۍ ؟ دلسو ساعتونو کار قیمت څومره ؟ ) خو د همدې کار (( ارزښت )) بیا د بازار یا د نرخونو میکانیزم ( عرضه او تقاضا ) له خوا په طبیعي توګه ټاکل کیږي ( یعني که چیري په کوم کار تقاضا او غوښتنه زیاته شي نو قیمت یې لوړیږي او برعکس صحیح دی . کله چې د افرادو طلبي غریزه لوړه شي نو په اجناسو غوښتنه زیاتیږي او چې د کارخانو خاوندان د تقاضا زیاتوالي ویني لازیات تولید ته تشویق کیږي تولید او د هغه نرخ ( دواړه ) لوړ وي خو کله چې دتولید عرضه اضافه کیږي اهمیت یې راکم شي ، ورسره یې نرخ هم را وغورځي ، تولیدونکي ددې وضعي په لیدو سره یو ځل بیا تولید کم کوي او نروخونه بیرته توازن مومي په دې توګه ټولي اقتصادي معاملي په خپله ( خود به خودي ) استقرار او توازن مومي ( یعني اقتصاد

# خلافت

میاشتنی

دیني ، علمي ، سیاسي او ټولنیزه خپرونه



پراسلامی روح د کفری وسوسو یرغل

سرمقاله



ACKU

امه بن لادن چې جرم يې هم ندی ثابت امریکا
ي سپارل ضرور ګڼي خو جنرال مالک چې د (۸۰۰۰)
البانو قاتل دی امریکا سیاسی پناه ورکړېده

عالیقدر امیرالمومنین د پاکستان د کورنیو چارو له وزیره سره د کتنی په ترڅ کی

رعایت ادب و حقوق دیگران از دیدگاه اسلام





د معاصر اقتصادی نظام د سقوط پیلامه



## وَاِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلَى مَا اَنْزَلَ اللهُ وَاِلَى الرَّسُولِ رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا (٦١) سوره النسا

او کله چه وویل شي دې (منافقانو ته راځئ ! طرف د (حکم د) هغه (کتاب) ته چه نازل کړی (رالیږلی) دی . الله (یعنی قرآن ته) او طرف د (حکم د) رسول (د ده) ته (د جګړې د فیصلې له پاره) نو ګورې به ته منافقان چه ګرځي به له تا (له ډېرې دښمنۍ) په ګرځیدلو سره دمخ .

## تفسیر :

یعنی که په کومه جګړه کښې منافقانو ته وویل شي چه " د هغه حکم په لورې راشئ ! چه د الله تعالی له لورې نازل شوی دی او د هغه د رسول په مخ کښې خپلې جګړې وړاندې کړئ ! " کله چه دوی ظاهراً د اسلام مدعیان دي . نو ځکه په صاف ډول سره انکار نشي کولی ، محجر ستاسی په حضور کښې د راتللو او غواړي چه په کوم چل او فریب سره ځان ترې ګوښه (بیل) کړي . او له رسول الله مبارك څخه پرته بل کوم ځای ته چه د دوی زړونه ئې غواړي لاړ شي او هلته خپلې جګړې فیصله کړي

د پښتې شرحه

